# دا باسین سپېدې


لیکوال

سلیمان لایق



دافغانستان د علومو اکاډمي

د پښتو څېړنو بین المللي مرکز

۱۳۶۲ کال

یادونه : که څېړونکې د لایق د دغو خپرو شویو آثارو او د هغوی د پخوانی ځانګړی چاپ تر منځه څه توپیر ومومي ـ علت یې د لیکوال نوی کتنه او سمون دی .

خپرو ونکی


مهتمم: نعمت الله اندړ

د چاپ شمیر : ۵۰۰۰

د چاپ ځای: دولتی مطبعه

# يو ه لنډه يادو نه

د پښتو ټولنو بين المللی مر کز د ستر انقلابي شاعر او ليکوال د دغې مجموعې په خپرولو سره د پښتو د ادب نړۍ ته يو نوی انقلابي سوغات وړاندې کوي .

تر او سه مشهوره وه چې سليمان لايق د شعر د ډګر اتل دی. رښتيا هم ده چې د چونغر ، يادونه او درمندونه، کېږدۍ؛ بادبان او نورو نه هېرېدونکو انقلابي منظومو آثارو په ايجاد سره سلېمان لايق زموږ په انقلابي ټولنه کې د شعر د آسمان ځلانده لمر ، د اجتماعي رياليزم مؤسس او د دغه تاوده سنګر لومړی سرتېری دی . خو خبره يوازې د شعر په چاپيريال کې نه ده ، دغې سپېڅلې ادبي مبارزې د ده د خواږه نثر په ډېرو ښکلو لړيو کې هم خپل قوت ښکاره کړی چې دلته يې د ادب مينانو ته وړاندې کوو .

د شلمې پېړۍ د سترو انقلابي غور ځنګونو او اوږتونو سمندر ستر موجونه له ځانه سره راوړل چې د ادب نړۍ ته يې هم سر کشې څپې ور سېدې. د دغو سر کشو څپو په غېږ کې د ادب يو انقلابي ميتود، يعني د اجتماعي رياليزم ميتود هم منځ ته راغی چې د طبقاتي نړۍ د انتقادي رياليزم د ميتود ځای يې و نيو .

زموږ په فيودالي ټولنه کې د ظاهر شاهي او داودشاهي سانسورچيانو دغو سر کشو څپو ته د شګو بندونه واچول. دا بندونه تر دې اندازې وو چې د سليمان لايق په نامه ښځي جائزو موضوعاتو هم د خپرېدلو اجازه نه لرله او ډېرې خپرونې به کله د سپنتا او کله د زرغون شرنوال، خاټول او په نورو مستعارو نومونو خپرېدلې.

د ثور انقلاب دغه د شګو بندونه مات کړل او دا دی د لايق د منثور ادب او لنډو داستانونو وړه مجموعه ګرانو هېوادوالو ته وړاندې کوو .

دا مجموعه هم د اجتماعي رياليزم د ميتود يو په زړه پورې اثر دی چې د هر داستان په مر کز کې يې د ټولنې د استثمار ګرو له نظره لوېدلی، ظاهرا وړو کی، خو په حقيقف کې ستر او

جوړوونکې انسان ځای لري. مرور شپون، د کارخانې جشن، خړ کی ماشین؛ نوی گردان او داسې نورېې ښی بیلگې دی.

لایق یوازې انقلابي شاعر نه، بلکی د انقلابي نثر لیکوال هم دی. که د ده هر انقلابي شعر د هر انقلابي زلمي لیکوال لپاره د انقلابي درس حیثیت لری ، همدغه شان دده هر انقلابي نثر د انقلاب مین لپاره مکتب دی .

تل دی وی دغه مدرسې او دغه مکتبونه

دوست شینواری

# کسات

ستا او ښکې اوس بې وخته باران ته ورته دي. زه بيا ستاسې کېږديو ته نه درځم؛
زما لمن خوشې کړه، په ما پسې نوره مه ګرزه، زاري مه راته کوه او مه راته ژاړه!
بيا به ستاسې د کلي نوم وانخلم او په دې لارو به بيا درنشم؛
شپې او ورځې به يو کړم . په بېړه به له غرو رغو څخه واوړم. او هيڅکله به بيا بېرته راونه ګورم؛

داسې منډې به ووهم لکه عمر چې يې وهي او داسې ژر به له ستر ګو ووزم لکه ځواني چې وزي؛ داسې ځای ته به لاړ شم چې ستا سي کېږدۍ هلته نه وي درېدلې.

داسې لارې به پر ېکړم چې ستاسې او ښان نشي پې تلای او په داسې غرو کې به ځای ونيسم چې ستاسې د مېنو بادونه هلته لاره نلري؛

زړه به مجبور کړم چې تا هېره کړي او ستر ګې به وتړم چې بيا هېڅکله زما ماشوم زړه ونه غولوي؛

له وفا نه به منکر شم او مينه به وشړم؛ حيلې ترانې به وسوځوم او له خلکو به ګوښی شم؛

هالته لرې به د لوړو غرو د پا سه ټول عمر له سپېدو تر ماښامه وخاندم. وبه خاندم چې تا هېر ه کړم او پسې خاندم به چې ځان هم راڅخه هېر شي. تر هغو به وخاندم چې طبعيت په تا وخندوم او تر هغو به ليونتوب کوم چې تا هم د ځان په څېر ليونۍ کړم؛

اې او ښا نو وتښتئ، اې کېږديو وسوځئ او اې قهرجنو توفا نونو سر اوچت کړئ او زما د نيمګړې ځوانۍ او ناکامو هيلو کسات واخلئ.

۱۳۳۷

# شپېلۍ

اې ځوانه شپونکيه ! خپله شپېلۍ وغږوه او ما د هغې په ناپايه ځپو کې د دی ستومانه ژوند له غمونو څخه وباسه .

کله چې زه نه يم او زما په قبر باندې ځوځان او وحشي بوټي شنه شوي وي هره نغمه چې د شپېلۍ له ستونې راوزي خامخا به زما د هېر شويو دردونو بشپړه څېره پکې انځور شوې وي .

کله چې زما قلم او ژبه زما د رنګينو خيالونو او انديښنو له تعبيرولو څخه پاتې شي زه به د خپلو انديښنو د بيا ن لپاره خپل دوستا ن د فرخا ر غرونو ته راوبولم او هلته به د تاوراتاو درو په غېږ کې له ځوان شپونکي څخه وغواړم چې د لرګي شپېلۍ ورواخلي او د شپنو نغمې هغوی ته ورواوروی او هله چې د شپېلۍ زړه را ښکونکې ځپې زما د نا سپړل شويو سندرو نغمې وغوړوي او له نا ويل شويو دردونو څخه پرده پورته کړي ، زه به هماغه وخت خپلې او ښکې پاکې کړم او دوی ته به ووايم چې دادی زما د ناکرار و انديښنو ترجمان .

هيڅ سا ز د شپېلۍ خوند او کيفيت نلري. نور سازونه مستي، خوشالي او وجد راولي ، مګر زموږ د شپنو د شپېلۍ نغمې يو دا سې اعجا ز لري چې حساس انسان لاس نيولی د بزګرانو جونګړو او د شپنو شپولو ته بيايي او هلته نا کام عسقونه او بې دوا رنځونه ورښيي.

کله چې زه په نيمو شپو کې د لارويو کاروانيانو نغمې د شپېلۍ په نارو کې اورم بې اختياره مې د خپل ستر اولس د تاريخ هغه ترخې پيښې تصورته راشي چې له وينو، چيغو او کړاوونو څخه ډکې دي .

شپېلۍ د پښتون ملت د زيارايستونکو د اوږدو بدمرغيو او چيغو تاريخ دی. څوک چې د دوی د شپېلۍ له دردوونکو نغمو سره نه وي ا شنا ګواکې د پښتنو خلکو له تاريخ سره نه دی ا شنا شوی.

کله چې د پرديسو او ښبنو په تودو زړونو کې بې تعبيره دردونه و خوځېږي؛

کله چې د ستړو ستومانه بزگرانو په ککرو کې د ناروزل شويو استعدادونو څړيکه سر راپورته کړي ، او کله چې د خوار شپانه شړل شوې هيلې سرواخلي بيانو شپېلۍ ته ورتښتي او خپل هر څه د هغې نغموته ورسپاري.

ډېر کلونه به تېر شي، ډېر بدلونونه به راشي، ډېر به وخاندي او ډېر به وژاړي، مگر داسې ورځ به هېڅکله رانشي چې د هندوکش وگړي شپېلۍ ونه غږوي او د هغې په سوځوونکو او غمجنو څپوکې د تېرو او هېرو نسلونو د ساړه او ناميند ژوند خاطرې يادې نکړي.

وغږوه، وزغږوه !

اې ځوانه شپونکيه ! خپله شپېلۍ وغږوه او ما د هغې په ناپايه نغمو کې د دې شرموونکې ژوند له غمونو څخه يوه شېبه وباسه !

ثور ـ ۱۳۳۸

# اوښکې

زما د سلگیو کاروان مه بندوئ، پرې مې ږدئ چې خپل زاړه دردونه د اوښکو له څپو سره ولېږدوم .

نور د خندا ملگري دي او زه د ژړا. ژړا د وږیو سلگۍ ده او خندا د مړو غوغا . څومره نیکمرغ دي هغوی چې ژاړي او ژړلای شي .

هغه وخت چې انسان د ژوند له ستومانیو څخه اوکه[1] شي او هیڅ خواته لاره نلري ؛

هغه شپېه چې مغرور او بې جلبه قدرتونه د مستحق په مرۍ پښنه کېږدي او لوری ترې ورک کړي !

هغه ماښام چې د کلي هلکان ماشوم یتیم ووهي او مرور شي ؛

هغه سباوون چې پردیس مزدور په پردي ملک کې د لارې په ژۍ د ځنکدن سلگۍ وهي؛ هغه وخت یوائې د اوښکو څپې خوځېږي او د هغو نامیندۍ پای ته رسوي .

بارانونه دي چې سیلاوونه خوځوي او دریابونو دي چې د بهېر لاره تاکي. پرېږدئ چې بارانونه واورېږي او تالندې خورې کاندي . پرېږدئ چې تندرونه راولوېږي او دا برجونه چې له خاورونه راپورته شویدی یو ځل بیا له خاوره سره برابر کاندي.

د اوښکو لاره مه بندوئ ؛

که ژرانه وای هیچا به نه وخند لي .

کابل-۱۳۳۸

---

۱ ـ اوکه AUKA = پکو

# اتڼ چي

د شپې په تور زړه کې سپين ستوري ځلېدل او د ستورو په نرۍ رڼا د لارې شاوخوا بوټي د باد کمزوري بهېرته ورو ، ورو خوځېدل او داسې ښکارېدل لکه په يوه بشپړه وراکې چې ټول خلك اتڼ وهي .

سور گل د همدې بوټو په منځ کې د دښت په نريو لارو روان و . دی په داسې ژورو انديښنو کې ډوب تللی و چې د ستورو ښايست، د دښت چوپيا او د ځوانۍ درونډ خوب يې بيخي له ياده وتلي وو.

ده افسوس کاوه کاشکې دې واده ته نه وای راغلی او يا په اتڼ نه وای ورگډ شوی.

نه پوهېږم نن شپه څه راشوی وو چې نه ډول زما له پښې سره برابرېده او نه زما پښه له ډول سره.

زه بيا دا گڼې څڼې ، دا نرۍ ونه او دا ښايسته ځواني څه کوم؛ نندارچيانو به څومره راپورې خندلي وي !

اوه کاشکې د اتڼ ميدان خو کلا ته نږدې نه وای او پيغلو خو د ديوالونو له سره زما د ناوړه غورځو پرځو ننداره نه وای کړې .

ناکام اتڼ چي همداسې پخپلو ترخو انديښنو کې روان و ، د کلا په برجانو باندې د اتڼ د ميدان د لمبو انعکاس، د ډولونو آواز ، د آسونو ششنهار، د چلمانو لوگي او د کلا د پاسه د سرو سالوگانو کتار د ده سترگو ته وروسته، وړاندې کېدل.

هغه شپه تېره شوه او ډېرې نورې شپې پسې راغلې، ډېر ودونه او کوژدې تېرې شوې او څو څو ځلې ډولونه وغربېدل مگر سور گل بيا اتڼ وانه اچاوه او مات شوی زړه يې پيوند ونه شو.

د فنکار زړه هغه ښيښه ده چې يو ځل مات شي بيا پيوند نه مني او نه رغېږي .

ښرنه ـ ۱۳۳۸

# دغرونوپه تیاره کې

دی د غرونو په تیاره کې لوی شو . د کمرونو په اړخ کې یې څو کاله شپېلۍ وغږوله. د سپوږمۍ په پلوشو کې یې د سین له ترانو څخه خوندور الهامونه واخیستل. له مینې او گرمۍ نه یې ډ کې سندرې وویلې. لوړ خیالونه یې په سر کې را پیدا شول او ښایسته مرغلرې یې سره وپېیلې... خو افسوس چې د ده ټول رازونه، عشقونه، هیلې او اسرې د ده په زړه کې غوټه پاتې شول او له ده سره یو ځای خاورو ته لارل.

یو ځل یې د ژمي په یوه توفاني او سړه شپه کې لارورکې پردیسان له مرگ څخه خلاص کړل او لارې وروښوده ، په قبایلي جگړو کې څو ځله په مورچه وخوت او دښمنان یې مات کړل.

د ښکار په وخت یو ماهر ښکاري، د جگړو په وخت یو زړور سپایی او د کار په وخت یو چسپانده بزگر او گړندی شپون و .

دی د ژوند تر پایه له تیارو څخه راونه ووت او روښانه نړۍ یې ونه لیدله.

د ده گړندۍ منډه، خوږ آواز او د ده د ذکاوت ستره برېښنا له نړۍ نه پټه پاتې شوه او چا یې اندازه ونه لگوله. ده ته هغه الفاظ او توري چا ونه ښودل چې د له هغوی نه یو ښایسته پل جوړ کړی وای او په دې پله باندې له خپلو تنگو غرونو څخه پراخې دنیا ته ورپورې وتی وای.

دده عشقونه، د ده ارمانونه او د ده سندرې له ده سره یو ځای خاورې شول. دادی تر نن پورې زما د خلکو ژوند.

۱۳۳۸

# د زماني په ناپایه سین کې

د زمانې په ناپایه سین کې د څپو له ټکرونه لکه کوبۍ [2] را پیدا شوم. پخپله کوچنۍ هنداره کې مې ناڅاپي د جهان څیره ولیدله. د سین زورورو څپو پخپلو منګولو کې ومروړلم. د حرکت او سکون، د رڼا او تیارې لوری مې ولګاوه او خپل کمکوټی وجود مې د زمانې د سترې هستۍ په لمن کې ولید.

ما غوښتل پخوا تر دې چې د مرګ پیاوړی سوک زما د نظر آینه ماته کړي څو خوږې سندرې وبولم. ما خپلې سندرې وبللې، مګر د زمانې د توفاني او ناپایه سین ابدی کوکو زما نغمې هسې پخپلو څپو کې محو کړې، لکه چې په یوه کوچنۍ بېړۍ کې د څڅوبې آواز د سمندر د غضب په کړیکو کې ورک شي.

ډېر به په دې لارو راشي او خپلې سندرې به وبولي، مګر د زمانې دا ابدي کړیکو چپاو به د هغوی سندرې هم زما د سندرو په څېر نابودې کړي.

دا دی د کوچني انسان ابدي سرنوشت او د زمانې پیاوړی او نه او ښتونکی بهیر.

کابل ـ ۱۳۳۹

---

۲ ـ کوبۍ = حباب

# د شپانه نغمه

اې لوړو غرونو ! ستاسې په لمنو کې زما د ځوانۍ ډېرې خاطرې پاتې دي ؛
لا تر اوسه پورې زما د ميږو د پلونو نخښې تر لويو پرښو لاندې باران نه دي ړنګې کړي.

لا تر اوسه هغه ځلي پر ځای ولاړ دي چې ما د غرونو څوکو ته نېږدې د واورو په منځ کې درولي دي ؛

لا تر اوسه زما د ميږو په شپوله کې رمې پنډېږي او د شپنو کتهوی په لوګجنو رغليو(۳) باندې ايشي ؛

لا تر اوسه زما د ميږو وري هر پسرلی هغو ورشوګانو ته رابهېږي چې ما به د دوی مندې هلته پوولې ؛

د دې غرونو هر کمره زما د سندرو او شپېلۍ آواز اورېدلی دی. ما د غره هر موړ او هرې څوکې ته د رمو د خاوندانو د بېرحمۍ او بېدردۍ داستانونه اورولي دي.

کله چې بزګرانو په خپلو درمندانو باندې شپې تېرولې، کله چې همځولو شپنو به سبا وختي له شپولو څخه خپلې رمې ايستلې، کله چې سترو کاروانيانو به په سهمجنه او چوپه تروږمۍ کې لار وهله، کله چې پردیسو مزدورانو به د خانانو د برجونو د جګولو لپاره د سپېدو په مهال لاسونه بډ وهل، ما به په همدا سې وختونو کې پخپلې شپېلۍ ګوتې پورې کړې او دې سترو او نامينده خلکو ته به مې دمه ورکوله.

زه د نږدې کليو ټولو پېغلو پېژند لم او په ټولو شپنو ګران وم. خپلې شپېلۍ زه په ټولو خلکو کې مهشور کړم، مګر له زړښت او ناتوانۍ نه يې ونه ژغورلم. اوس چې رمې له هوارو سېمو څخه غرونو ته لېږدي زما له سترګو بې اختياره اوښکې راتوی شي.

کاشکې يو ځل بيا زلمی شم او د جګو ورشوګانو له مينځه مخ په ځوړه په پراخو دښتو نظر وغوړوم.

اې جګه آسمانه ! يو ځل خپل زړه ما ته پرانېزه چې ستا په شنه ورشو کې د سپينو او تورو وريځو مستي وګورم.

هې زلمیو شپنو ! ستاسو د ځوانۍ موده لکه بریښنا لنډه او لکه لیدلی خوب هیرېدونکې ده، تاسی په دنیا کې پردیسان یاست . عمر په غم کې مه تېروئ، وخاندئ، وناڅئ او سندرې وبولئ !

له مرګ څخه مه ویرېږئ، هلته چې د مرګ وېره سیوری خور کړي ښادي او هیله تښتي. مرګ د ژوند د مزل وروستی پړاو دی او داسې لیوه ته ورته دی چې هرې مېږې ته یو ځل درېږي.

کله چې زه مړ یم او زما په قبر وحشي ګلونه غوړېدلي وي له هر شپانه نه زما هیله داده چې کله زما له خاورو تېرېږي خپله شپېلۍ وغږوي او ستړي ژوند ته نوې دمه ورکاندي .

۱۳۳۹

---

۳ ـ رغلی = نغری

# زه

له ما نه غوښتل شویدي د ځان په باره کې یو څه ولیکم، خو ما ته تر څه د ځان په باره کې لیکل گران ښکاري. دا ځکه چې زما په ژوند کې داسې رنگینۍ نشته چې هغه به د لوستونکو لپاره څه خواږه ولري.

زما ژوند د یو عادي پښتانه ژوند دی چې ماضي یې له لوړې، محرومیو او دردونو څخه ډکه ده او حال یې په زړو دوسیو او میزونو کې د نورو د خوشالولو او راضي ساتلو په کار کې تېرېږي. کله کله مې چاپېریال وتخنوي او یوه برېښنا مې تر سترگو کړي، زه دغه وخت قلم راواخلم او یو څو کرښې د خپل اولس د او ښتونکې تقدیر په کتاب ولیکم. دا وخت هغه بزگر ته ورته یم چې په وچه ځمکه کې د باران په هیله دانې کري او دا ډاډ ورسره نه وي چې د آسمان او به به د ده کروندې ورسېږي.

هغه وحشي گلان چې کله نا کله په دې کرونده کې گوتوته راشي پخوا تر دې چې د چا پیکي یا گریوان ته یې ورسوم را څخه وچ او مړاوي شي.

زما خصوصیت دا دی چې د سپیدو غوندې له تیارې نه د رڼا پخوا ځم، خو کله چې لمر راوخېږي زه به نه یم. زه له زمانې سره گرد چاپیر راگرزم او د هغې د گرزېدو موزیک اورم، زه د دې موزیک لپاره موزونې ترانې لیکم، مگر د ځمکې زاړه قابضان چې د مرگ پولې ته نږدې شویدي زما له ترانو سره ضدیت لري او هڅه کوي د دې نغمو او مستقبل تر منځ پوله واچوي. خو زه به تل د سپېدو په څېر د لمر د راختو ترانې تکرار کړم.

۱۳۴۰

# ژړندوکی یتیم

دا ببر سری او پښې لوڅی ماشوم ولې ددې قبر د پاسه ژاړي ؟ دا مړی د ده څه کېږي .
ولې دی په داسې چا ژاړي چې دده ځواب نه ورکوي او مهرباني نشي پې کولای !
دا ژوندي خلک ولې دده اوښکې نه پاکوي او سمه لار نه ورښيي ؟
نه ، نه ، پرېږدئ چې خپل له دردو ډک راتلونکی سرنوشت ته وژاړي.
دی پوهېږي چې وروسته تر دې داسې څوک نلري چې دده په سر د زړه سوي او همدردۍ لاس راکاږي. داسې سترګې نشته چې ده ته د مينې او مهربانۍ په نظر وګوري او داسې سړی نه پیدا کېږي چې ده ته زوی او بچی ووايي. دی باید یتیمۍ ته تن کېږدي او لکه خود رویه بوټی د وحشي طبعیت هر راز ظلمونه او جفاګانې وګالي. دی باید وږی، تږی او بې تعلیمه لوی شي ، د نورو تر سیورو لاندې ژوند وکړي او هيڅ ځانګړی مقام پيدا نکړي.
ګرانه له دې ځایه لری شه ! دا د مرګ او نیستۍ پړاو دی. دا د ورکې او هېرې خوا ته د مسایرو لار ده او د انسان د هستۍ او ژوند وروستی کور دی .
لرې شه ! لرې شه ! چې د دې زړې هدیرې سړه او غمجنه سېلۍ ستا په ماشومو او تاندو احساساتو بده اغيزه کوي .
راځه ! راځه ! د زړه سره چې د دی لوګجن ښار په تیارو کوڅو او غمجنو کوټو کې خپل دردونکې تقدير ته لار ونیسو او بدل يې کړو .

کابل ـ ۱۳۴۰

# دا عجیب انسان

د کائناتو په زړه کې لروبر خوځېږي ، هر شی پلټي او له هر شي سره علاقه ښیي، عمر یې
ډېر لنډ دی ، مګر هیلې یې پای نلري.
ډېر کوچنی دی ، مګر ګمان کوي چې په ټوله نړۍ کې نه ځاییږي. دومره حرص لري چې
د ګردې ځمکې په شتو نه مړېږي، مګر په پای کې د یوه ګز ځمکې بندي شي ؛
یا دومره په ځان مین وي چې زرګونه وګړي د ځان تر ګټو جار کړي او یا داسې تر ځان تېر
شي چې خپل سر هم د نورو لپاره قرباني کاندي ،
په تپه تیاره کې د نا معلوم هدف خواته روان دی او له مجهولاتو څخه پرده پورته کوي ، خو
لا تر اوسه داسې ځای ته نه دی رسېدلی چې ډاډ پیدا کړي. هر څومره چې په مخ ځي دده
شکونه زیاتېږي او کله چې له ډېرو منډو ستړی شي بیا نو د یوه مجهول تر مخ ودرېږي، په
تشو او بې معنی خیالونو او تصویرونو ځان غولوي ؛
کله چې پخپلو هڅو کې ماته وکړي ځان تر میاشي هم کوچنی ورته ښکاري او کوم
وخت چې پرله پسې بریالی شي د خدایي دعوې هم کوي.
هر شی تسخیرولای شي، مګر د ځان په تسخیرولو کې ناکام دی ؛
ټول پیژني او هر شی څېړي، مګر ځان نه پیژني. د پراخو کائناتو په ګېډه کې نامعلومې
خواته ځغلي او تر اوسه لا مزل ته نه دی رسېدلی .
دا عجیب انسان !

۱۳۴۰

# زما نيمګړې ترانه

سبا به د نوي کال سپېدې خپله ځلانده او رڼه لمن زما د هېواد په غرو او رغو وغوړوي، مګر زه لا د پسرلي استقبال ته نه يم آماده شوی ؛

کليوالي پيغلې به سبا د غرونو لمنو ته وخېژي او د سرو خاټولو ګلان به په ځنو کې وټومبي ، ځوان شپانه به له ورغاليو څخه خپلې رمې وخوځوي او د پراخو دښتو په شنه ګريوان به يې وبهوي ؛

هغه لومړنۍ توتکۍ چې له تودو سېمو څخه راغلې ده د رنځور شاعر جونګړې ته به ننوزي او د پسرلي زيری به ورکاندي.

د پسرلي پسته او خوشبويه وږمه به د يتيم ماشوم په سپين چک او ضعيف وجود کې د منلو او لوبو هوس را وپاروي او په پښو ، لاسو کې به يې نوې دمه وخوځوي ،

د تورو وريځو د چت په نيلي کړکيو کې به چې له هسک څخه مخ په ځمکه را پرانستل کېږي ځای ځای په نيلي کوهيو کې د زاڼو کتارونه ښکاره شي او زلمي ښکاريان به له کليو نه د سينونو او ځنګلونو لمنو ته راکاږي.

د ژرندو د ناوو کنګل به مات شي او د ژرند ګړي ماشومان به د ژرندې د ويالې په غاړه د ژېړو ګلانو ګېډۍ وتړي ؛

زرکان به د غرو له تودو ناوو څخه ځوکو ته پورته شي او د کمرو د پاسه به د پسرلي په وياړ سندرې وبولي ؛

سينونه به خړې او به راوړي او د څپو له شونډو به د مستو او ښانو په څېر ځګونه را پورته شي په دې شيبو کې به تاريخ خپله نوې پاڼه د زړورو مبارزانو او اولسونو د کارنامو لپاره را برسېره کړي ، مګر زما تحفه به د خلکو د ارمانونو د لمانځلو لپاره نه وي تياره شوې او نا تمامه به وي .

زما دردونه به نا ويلي پاتې شي او زه به د پسرلي د پادشاه مخ ته تش لاس او ځوړند سر ولاړ يم ؛

زه نن کټ مټ هغه لامبوزن ته ورته یم چې په تپه تیاره کې د یاغي سین د څپو منگولو ته لوېدلی وي او د وتو لورې نه ورمعلومېږي .
که څه هم زه لا تر اوسه د څپو څپېړو او خپلو پرله پسې هلو ځلو نه یم ستومان کړی ، مگر دا ویره مې ورو ، ورو ډوبوي چې زما نیمگړې ترانه به بشپړه نشي او زه به د پسرلي سلطان ته دخلکو د هیلو زرین مزی وړاندې نکړی شم.
اوه ، خلکو له ما سره مرسته وکړئ !

۱۳۴۱

# ماشومتوب

کله چې د اوړي په توده غرمه کې له خپله کاره ستړی ستومانه کورته راګرزم ، د کوڅې ماشومان د لمر د سوځوونکو شغلو لاندې لوڅې پښې او بربنډ سر ښکته پورته په بل پسې منډې وهي. دلته د میندو واویلا نه رارسېږي او څوک غوږ هم نه ورته نیسي .

په دوی کې د ډلې مشر او د اعتبار خاوند هغه څوک دی چې ډېر ځغلي او تر نورو د ګرمۍ او ستومانۍ زغملو زیات طاقت لري ، مګر بیا هم ملګری نومېږي او څوک یې خان یا ارباب نه بولي او هیڅ امتیاز هم نه غواړي.

کله چې کوچنی وم او د ونو په څانګو کې میووته به مې لاس نه رسېده، د لوییدو او لوړیدو سخته تنده به راپیدا شوه .

انسان ډېر لوییدای او لوړ ېدای شي ، خو کله چې لوی شو ، بیا نو د کوچنیتوب ارمان کوي خو کوچنی کیدی نشي.

رښتیا د لویېدو او جګېدو حرص څومره غولوونکې او رېړوونکې دی .

که ما کولی شوای هیڅکله به نه وم ستر شوی او تل به هماغسې کوچنی پاته شوی وم . آیا دا ښکلي ماشومان چې هر مازیګر د سین غاړې ته د شګو کورونه جوړوي ما به په خپله ډله کې ومني او زما د ورتګ له کبله به د خپلو لوبو ځای بدل نکړي ؟

آیا که دوی ما ومني مشران به په ما پورې و نه خاندي او لیونی به مې و نه بولي ؟

پرېږدئ ، پرېږدئ چې زه کوچنی شم ، تاسې چې د لویېدو هوس لرئ پر مخ لاړ شئ او لوی شئ .

کابل ـ ۱۳۴۸

# وروستۍ اوښکې

د ژمې شپې ورځې وې ، ځمکو او کروندو د واورو سپينه برستن اغوستې وه . سړه او تيزه سيلۍ چليدله . په سين کې د کرلونو سترې سترې جالې رابهيدې. د مارپيچ سين په غاړه د ناقلو بزگرانو دلوخوجونگړو ته د کلي د سباوون لوگيو غمجنه منظره ورکړې وه . خړې سړې هوا او د باد په څپو کې دسبايي د تنورونو لوگيو او له دې سره د وچې واورې د بخرکو نڅا د ناقلو د ختو کورونو ته داسې منظره ورکړې وه لکه د هندوکش په توفاني هواکې چې لويې پربنې او کمرونه د گردلې په منگولو کې راچرموړل شوي وي.

د شاداد د لوخو يواځنۍ ځانگړې کپه د توفاني باد تر يرغل لاندې داسې خوځېدله لکه چې سا اخلي. د باد له هرې غوټې سره به د کپې اندامونه وخوځيدل او په چت پورې راځوړند د مالگې او مرچو کدوان به يې چې د تناره همېشني لوگي تور کړي وو ، سره ووهل او يوه زړه بدوونکې موسيقي به يې خوره کړه . د باد او توفان د هيبت له زوره د کلي سپي د بوساړيو او خشاکو په سوريو ننوتي وو. ژمنيو چوغکو او کورنيو چرگو په بوټو او دلوخو په خځلو کې ځانونه پټ کړي وو.

زرغونه ابۍ په لوگجنه لوخي خونه کې ناجوړه پرته وه. وجود يې پرله پسې تبو او د نېستمنۍ اوږده مصيبت ويلې کړی و . سترگې يې د سر په کاسه کې ننوتې وې ، د پوزې چمبريې لکه تبره تيغ ځان نری کړی او شونډويې پرېړ تورخړو کې نيولي وو. په سترگو کې يې د ژورې ويرې علامې راپيدا شوې وې .

دری واړه لورانې يې سرته ناستې وې. مشره لوريې د مور په برخه ليک پوهيدله، مړې اوښکې يې په غومبرو رابهيدلې .خو کوچنۍ لور يې ډېره ماشومه وه د مرگ او ژوند په حقيقت نه پوهيده . کله کله به يې په مصيبت ځپلې خونه کې آخوا د بخوا ودانگل او کله به د ناروغې مور په مخ ورپرېوته او مخ به يې پر مخ ور کېښود.

د هستو گنې کپه تر خولې دتناره له لوگي ډکه وه ، مگر توده نه وه .

د زرغونې پر مخ د سړو اوښکو نه تمايدونکی کاروان راروان و او د سوځوونکې

تبې په لمبو کې یې د خپلو ماشومو لورانو د نامعلوم مستقبل په باره کې فکر کاوه .

«څوک به کالي ورمینځي ، له چا سره به اوسي ؟ او په چا به واده شي . . .» په فکر کې به سابندي ورپیدا شوه ، ستونی به یې وپړسېده او نرۍ او ښکې به یې په غمځپلو ویښتانو ور ګډې شوې.

د مړینې او ګور د اندیښنو تصوراتو بیچاره ښځه د ناامیندۍ او بېکسۍ د توفان په لړو او وریځو کې راچاپیره کړې وه او په دې سخت اضطراب کې د تېر ژوند ترخو خاطراتو د غمونو په منګولو کې مروړله.

د پیغلتوب وختونه ورپه یاد شول. د کډو او کوچیتوب وختونه یې ستر ګو ته ودریدل. د کام، تربرونو، کورنۍ، خویندو او وروڼو څیرې یې تر ستر ګو شوې. د او ښانو، وریو او میږو د رمو څوږېږې واوریده. اوسنۍ پردیسي او دخپل لرې وطن د غرونو ، رغونو او اوږدو لارو تصور یې وکه. د خاوند جفا ، وچه او ځېږه وزه بیا په تېره د هغه اوسنی نامردانه غیاب یې خاطر ته راغی. غوشته یې آواز پورته کړي او چیغې ووهي او د راغلی خطر مخه ونیسي ، خو نور وخت تر دې تېر شوی و . . .

غوښتل یې کښېني او خپله کوچنۍ لور په غېږ کې ونیسي ، خو و نه توانیدله ، په فریاد یې پیل وکړ ، آوازیې غلی شو او ژبه یې ونښته. ویې غوښتل خپلې لورانې و ګورې او دا مصیبت ور ووېشي ، خو په ستر ګویې توره تیاره وغوړیده او هیڅ شی پکې ښکاره نه شو . په توره دړه باندې یې خپله کوچنۍ لور ولیدله، کاته یې چې له یو هسک پاڼ نه د خړو او بو خونړي ګرداب ته ورولویده ، چیغه یې وکړه ، مګر ژوند یو د هغې چیغه وانه وریده ، یوائې څو وروستیو او ښکو د هغې چیغې اوریدلې وې .

بالادورۍ-۱۳۳۷

# غلى شوى بلبل

ډېره موده کېږي چې دا سندرغاړى بلبل غلى شوى او مرور شويدى. دى په سختو کلونو او غمځپلي دوران کې زما د فريادونو ملگرى و . کله به چې خاټول وغوړيدل او د پسرلى او يانو وريځو به د دښتو ترخو او ځوځانو ته وخندل؛

کله به چې د کوچيانو کېږدۍ د غرو په لمنو کې پلنې شوې؛

کله چې د مني په مهال د ايل بندونو څخه کوچيانو له حپلو کلهو او ماشومانو سره خپل بې انجامه سفر د تودو سيمو خواته بيا پيل کړ؛

هماغه وخت به زما بلبل د ژوند د غمونو او غمجنو خلکو ترانې پيل کړې او تر هغه به چيغېده چې زما د ستر گو په چينو کې د او ښکو تالاب وچ شي . ده هڅچېرې او هېڅکله يوائې پرې نه ښووم .

کله چې د خپلې مور په مرگ وژړېدم ده هم راسره وژړل او کله چې د بدمرغو وگړو، لارورکوافرادو او ناورين شويو کسانو پر تور تقدير باتدې وځوريدم ده هم زما د سوي گوگل په قفس کې وزرورپول او پخپلو سندرو کې يې د انسان غمونه وپالل .

کله چې د ژوند تيارو ماته د مرگ دروازې پرانيستلې ده ماته د ژوند او اميد سندرې بللې ؤ د برې او پرمختگ ډاډيې راکاوه .

کله چې زما د ستومانه ژوند توفاني بېړۍ د امن په ساحل لنگر واچاوه او ما پر خپلو غمونو دروازې وتړلى ، دى غلى شو او بيايې د سوز او اورونهډ کې ترانې ونه بللې.

انسان پر سترو غمونو باندې د بريدو لپاره نړۍ ته راغلى دى. هيڅوک نه شي کولاى چې په مړه گيډه او ډکو ستر گو د هغو لطيفو او رنگينو مارغانو سندرې واورې چې يوائې د مبارزې او غمونو د واټ لارويانو ته ويل شوى دى .

۱۳۴۱ کال

# هغه څوک چې نه مري

دی په یوه نمجنه جونګړه کې پروت و، زاړه پوزکي یې ړړې زخمي کړې وې، څوک سې پوښتنې ته نه ورتلل او له چا سره یې د ژوند سودا لا هم نه وه.
د ده ټوله هستي همدا جونګړه او د غزلزیو توربخن کتاب و، چې د نغري لوګیو تور او کرغیړن کړی و.
ده زوی، پلار، .ور او هیڅوک نه درلودل او د ټولو مینه به یې فقط په هماغه کتاب ماتوله.
ده د خپلې تیارې جونګړې له ګوټ څخه نړۍ لیدله او د هر چا د کوګ په حال خبریدی شو؛ ده ته د یتیمانو او کونډو دردونه او د اوږو او تندو سوی معلوم و، ده دوزخ او جنت دواړه پېیګدل او په دې راو ښه پوهېده، چېڅنګه د آسمان له وریځو او ستورو سره خبرې وکړي او په څه توګه د شپو په تیاره او چوپتیا کې د مرور او محرومو انسانانو اګدیښنو ته لار پیدا کړي.
دی پر خاکو پوهېده او د هر چا د ژوند خوږه اوترخه ورمعلوم وو، مګر هغوی دې نه پیژانده او د ده په راز نه وو خبر.
ده د ډېرو بزګرانو، شپنو او لاېوزلو انسانانو په دردونو باندې ا.ښکې څڅولې وې او د ډېرو ربړونو په اورکې د نورو لپاره سوی و، مګر هغوی هیڅکله پوه نه شول چې دی له دوی سره ژاړي او یا د دوی د پاره سوځي.
هغه ورځ چې ده د جوګګړې له کوچنۍ کړکۍ څخه هلته لرې د آسمان په لویدیځو څنډو کې د بهاندو سرو اوریځو د قافلو تماشه کوله بې باکه له ستر ګو څخه او ښکې راوبهیدې، هڅه یې وکړه چې خپلې څړسکې ولیکي، مګر ګوتې یې په قلم و نه ګرځیدې، غوښتل یې څه ووایې، خو هلته هیڅوک نه و چې د ده خبروته غوږ کېږدي.

دسباوون لمر نوی په کلي غوړیدلی و چې خلکو د جومات په ګوټ کې پټ پټ یو بل ته سره وویل،

هغه خوار گوتهی مله شو ... هغه لیونی مړ شو ... هو ! په کرار شو ، خداپ دې وبخښي . سودایي و ...
د ده له مرگه څو ورځې وروسته بیا په جومات کې د ده د ژوند خبرې او خاطرې یادې شوې، یو نابلد پردیس چې هلته ناست و سخت په غصه شو او په لوړ آواز یې نارې کړې :
اې خلکو ! تاسو په غلطه روان یاست ! هغه نه دی مړ او نه مړي او بیا یې د ده دا ترانه لوستله :

«زه هره ورځ ویلي کېږم ؛
هر څومره چې زما نغمې د خلکو په پرگنو کې پراخېږي، زه هغومره د هغوی په زړونو او تصوراتو کې ژوند کوم؛
هغه وخت چې زه بېخې د خلکو له سترگو ووځ ؛
د خپلو نغمو سره به د کتاب په پاڼو کې ژوند کوم؛
وه نه مړم ، زه نه مړم ، زه ابدي ژوند ته منزل کوم ؛
کوم وخت چې زما اشعار ستاسې دردونه وسپړي ؛
او هغه وخت چې زما ترانې په تاسې کې یو خوځوونکې تأثیر واچوي .
هلته باید تاسو پوه شئ چې زه ستاسو په حساساتو کې ژوندی گرځم ؛
زه شاعر یم او نه مړم ...»

# اختر مبارکي(۴)

ګرانې ماري !

نن د اختر ورځ ده او زه په اوږدو اندېښنو کې ایران ناست یم. خوله مې د چوپیا پیاوړو منګولو تړلې ده او دا امکان یې له ما اخیستی چې د اختر مبارکي در کړم.

کله چې ته زما کوټې ته راغلې او زه دې په اوږدو اندېښنو کې ډوب ولیدم داسې فکر درپیدا شو چې زه به بیا د چا د شوخو نظرونو غشیو ژوبل کړی یم او دا ځکه چې تا زما د مینې د سمندر سرکشې ځپې لیدلې او په دې پوهېږې چې زه شاهر یم.

زه ونه خوځیدم او نه پوهیږم چې څنګه د خپلو ناکرارو او ژوبلو اندېښنو غمجن تصویر تاته وښیمؤ نو هماغسې ګونګـ پاتې شوم او لا تر اوسه مې ستا د هغې نامیندۍ لپاره زړه سوځي.

ما وبخښه ! زه شاعر یم او کله کله د اندېښنو په نیلي سپرېږم او له تاسو څخه تښتم. داسې وختونه ډېر راغلي چې زه ستاو په مینځ کې ناست یم، مګر حواس مې د وطن د لوړو غرونو د پاسه د وریځو هغه یرغلونه څاري چې لکه سرکش سیلاوونه مخ په ځوړه د درو په ناوو کې ځغلي او د بزګرانو په کلیو، کورونو وردانګي. کله چې لړې پر ټولو سیمو وغوړېږي د بادونو او توفان کړیکې مې تر غوږ شي، پدې وخت کې مې نظر هغه بوډا بزګر ته ځیر وي چې د تورو لړو او توفان په چپاوو کې د کلي لار ورکه کړې او د مرګ ژورو ګړنګونه ته ولوېږي، دی بیا هیڅکله خپل کور نهویني او د هغو ماشومانو نغری هیڅکله نه تودېږي چې خپل سر سیوری یې د تل لپاره بایللی دی.

ستا لپاره په دې خبرو پوهېدل ګران کار دی او دا ځکه چې تا د ژمې په شیلو کې یباې پښې له ګودر څخه او به نه دې راوړې او په کلي کې دې درویزه نه ده کړې. تا د خان په کرونده کې وږي نه دي ټول کړی او پردي بارونه دې نه دې چلولي. تا د هغه پلار په مرګ نه دې ژړلي چې په غرو کې تور مار چیچلی او یا خوني پړانګـ شیرلی وی.

تا داسې وروړ نه درلود چې زوروروي يې سر او خوله ورمات کړي وي او بې انتقامه پاتې شوی وي. تا داسې خور نه لرله چې په زبردستۍ له کوره بيول شوې او واده شوی وي. نو ځکه د خوښيو په شيبو کې زما د غمجنې چوپيا په راز نشې پوهيدای او زما په باره کې تور شکونه درپيدا کېږي؛

که زه پخپله خوښه وای ما به اختر نه وو کړی او چا ته به مې د هغه مبارکي نه وه وېلې؛

همدا اوس چې ته د اختر غرمې ته پخای کوي زموږ د ګڼو اولسونو زياتره کورونه د لوږې او نيستۍ په اور کښېسوځي او زموږ څخه د جلاوالي احساس کوي. زه له دې جلاوالي څخه سخت شرميږم او هيله لرم داسې زلزلې راوپارېږي چې زموږ او دوې تر مينځ پولې او تور ديوالونه ونړوي از موږ له دوی سره تر يوه بام لاندې په يوه رغولي کښېنوي.

پروسږ کال په همدې ورځو کې يوې ماشومې نجلۍ زموږ په کوڅه کې زموږ د کوچنۍ وږۍ[5] کاليو ته ايران، ايران کتل او ما د هغې په سترګو کې د ناپايه نامينديو او محروميت تور تصويرونه له ورايه وليدل.

سږ کال به بيا مليونونه ماشومان زموږ په هېواد کې د بډايانو د زامنو کاليو ته په حسرت وګوري او ورته و به سوځي.

په ښارونو کې به د لوږو ماښيو نه د پلاوونو او عطرونو وږمې په لويو واټونو کې بيا ډېر بې وزله لاروي وځوروي.

د سپينو او دنګو ديوالونو تر مينځ به ډېرې شتمنې او مستې پيغلې د خپلې عاسقانو په محفل کې ونڅيږي او په همدغو شيبو کې ډېر مزدوران د لوږې او مرضونو په تبو کې وسوځي.

دادی زموږ اختر او دغه ده زموږ د مسلمانۍ واقعي څيره!

نه پوهېږم چې دا ځينې خلک ولې په دې درواغجنو خوښيو ځانونه غولوي او هغوی ته هرکلی وايي؟

زه شرميږم چې داسې اختر مبارک ويولم او د هغه زيری تاته درکړم.

راځه ګرانې لکه څنګه چې ما ستا مينه له خپلې وينې سره اخشلې ده ته هم زما

ارمانونه له خپلې وینې سره ګډ کړه او اجازه راکړه چې ددې بدمرغ اختر د ترخو شیبو د آسانولو لپاره هغه اور ستا په زړه کې ولګوم، کوم چې د هلکتوب له ورځویې تر او سه پورې زما په ګوګل کې لمبې وهلې او زه یې ځورولی یم.

راځه د اختر د عبثو خوښیو کې د ګډون پر ځای هغه غمونه د وطن له محرومو خلکو سره وویشو چې د څو تنو داړه مارانو له خوا پر هغوی باندې بار شویدي.

راځه له ځانه ووزو او د بشري جهان د ناپایه سمندر له ځپو سره یو او ابدي شو.

راځه په ګډه د زمانې هغه سندرې خورې کړو چې په درو او کلیو کې د نیکمرغۍ زیری خپروي او اولسونو ته د مبارزې او د بري ایمان ورکوي.

راځه هغو انساني سیلاوونه ته لار پرانیزو چې د ماڼیو د خاوندانو زړونه ریږدوی او د طبعیت د ایلولو تر پولې پورې د منډې میدان لري.

که ته د همداسې پړاوونو په لنډولو کې له ما سره ملګرې شې زه حاضر یم چې د دې سفر په هر ګام کې تاته مبارکي درکړم.

کابل ۱۳۴۵.۱۰.۲۱

---

۴ـ دغه څو ټوټه شاعر خپلې میرمنې ته لیکلې ده.

۵ـ وړۍ د شاعر د لور نوم.

# د بنګال رقاصې- کماري چترا ته

په ما نن ستر غمونه راچاپېر شوي دي . د دې غمونو په ناپایه لړو کې د لارې لورې رانه ورک دی او ستا لمنې ته خپل مات لاسونه درغځوم .

زما زارۍ ومنه او پرېږده دا زما او چت سر چې هیڅ سرکش او زورور ته نه دی کوز شوی یو ځل ستا د هنر درشل ته ټیټ شي او ودې لمانځي .

ماته ونځېږه او پرېږده یوه شېبه خپل اوږده غمونه ستا د ناپایه او توفاني سمندر په څپو کې ورک کړم .

ونځېږه ! دلسې ونځنېږه لکه د آمو سترې څپې چې زما د هېواد لوړو او بربنډو غرونو ته نځېږي ؛

داسې ونځېږه لکه د بدخشان د منهو او مانز غوټۍ چې د پامیر د پسرلنۍ وږمې څپو ته ناڅي ؛

داسې ونځېږه لکه د واورو ښکاپ پاغوندې چې زموږ د ستر هندوکش په نیغو دروکې د ژمي هیبت ته نځېږي ؛

داسې ونځېږه لکه زما د هېواد د خاورې په ذره ذره کې چې د آزادۍ تلوسه ناڅي ؛

ونځېږه او زما ناپایه ستومانۍ له ما سره وویښه. مه پرېږده چې د بندي مرغه په څېر د نورو د خوښۍ لپاره په پولادي پنجروکې زما وزر توی شي .

زما قفس ته د خپلو زنګونو شرنګی راورسوه او زما په پولادي زندان کې د انسان د لویۍ او کرامت انګازې خورې کړه .

زما د احساس توفانونه د خپل ښکاي او ابدي هنر په بستر کې وخوځوه او پرېږده چې په بې خودۍ او مستۍ د خپل پولادي قفس دروازې ماتې کړم او په ګډه د خلکو د آزادۍ ترانې درسره وبولم .

کلکته- ۱۹۶۶

# راشئ خپلې سندرې وبولو!

له لرې نه د مارش آواز رارسېږي ، د موزیک د ترانې موجونه لکه سمندري څپې چې د غرونو پر لمنو وردانګي دساده نندارجیانو له سرو سینو سره سر وهي.

په دې ترانوکې د ځسنو وګړو او ځینو حوادثو ستاینه کېږي او سادګان لکه درمې ګډېږي بې ارادې سر ورته خوځوي . زما زړه هغه بېحر کته سوړ غر دی چې کلونه د دې احمقانه ستاینو پرله پسې بهېر ته ولاړ دی او هیڅکله له خپله ځایه نه دی بېځایه شوی ؛

په دې ترانوکې د بزګرانو ربړونه، د شپنو هلې ځلې او د مزدورانو له ویاړه ډک ژوند نه ستایل کېږي ؛

زما د بېخوبیو او ستومانیو، زما د لاس د تناکو او پیاوړو متو په باب دا ترانې او مارشونه هیڅ مضمون نه لري ؛

ما تر اوسه پورې په هیڅ ملي سرودکې د خپل اولس آوازونه نه دی تورېدلی؛

دا مارشونه د غلو، داړه مارانو او تیارخورو د غرور د تندې د ماتولو لپاره تیار شویدي، دا انسان ته د آزادۍ لار نه ورښیي، بلکه غلامۍ او بندګۍ ته یې وربولي ، دا په خلکوکې د حریت او آزادۍ روح وژني، دا د جګو سرونو ټیټول او پولادي ملاوو ماتول ړي، دا د زورورو د استبداد افسون او د حاکمانو د خودخواهۍ جنون دی ـ ځکه ما ته دا مارشونه که څه هم زما په هېوادکې ترکیب شوي دي پردي ښکاري او نه یې اورم او د هغه مغرورو ترانو څخه کرکه لرم.

آخر زما وطن چېرې دی ؟ زما کار څوک ستایي ؟ او زما د زیار لپاره څوک ترانې لیکي ؟

هغه مارش چېرې دی چې ما له خپل اولس او ستر هېواد سره ونښلوي ؛

راشئ چې خپل مارشونه ولیکو ؛ راشئ چې خپل زیارونه وستایو ؛ راشئ چې داسې سرودونه او ترانې ولیکو چې په هغوکې د خپل ځلاند مستقبل لویه لار ووینو .

راشئ چې خپلې ترانې وبولو او د هغو په بللو کې هغه ټول خلک راشریک کړو چې د آزادو ترانو له بللو څخه محروم شویدي او اوس د خپل تور سرنوشت په اوږده شپه کې د شپیدو د راختو سندرې بولي.

راځئ هغه سرودونه هست کاندو چې موږ له خپل لوی هېواد له خپلو خلکو او ټول بشریت سره یوځای کوي؛

راځئ د سولې، عدالت او وروری سندرې وبولو او د خلکو د دښمنانو نه پخلا کېدونکو زړونو ته د خپل اولس د برم او برې زازله ورننه باسو.

راځئ سندرې وبولو !

کابل-۱۳۴۴

# د ژوندوروستی پیغام

شپه وه . . . توره شپه وه

د بادون په غورهاو او د وریځو په منځو کې د آسمان ستورو د غم توره برستن اغوستې وه، دښتې او غرونه د شپې په ګیډه کېورک شوي وو، سندرغاړي حشرات غلي شوي او مرغانو غاړې نه وهلې.

د کلي سپېڅلې هوا، شین او ځلیدونکې آسمان، ښایسته شپه او ښکلی چاپیریال ګرد سره د طبعیت د غضب لاس ته لویدلي وو.

ګړندی توفان راروان و او یوه دوزخي تیاره یې پسې راڅکوله. د هیچا او هیڅ شي آواز نه پورته کیده.

شاعر په داسې یوه زهرجنه او ویرځپلې فضا کې د خپل ژوند د ترانو او دردونو کتاب پرنیستی او د یوې ژیړ بخونې ډیوې تر رپېدونکې رڼا لاندې یې د خپل ژوند وروستنی یادګار لیکه :

« اته کاله پخوا زه ستاسې ښایسته کلي ته راغلم، ما دلته د هستو. نې خیال نه درلود، ما یوازې دومره غوښتل چې ستاسې د ښایسته باندې نه د یوه ښکلي شعر د لیکلو الهام واخلم. مګر ماته ناځاپې پېښو په دې کلي کې دنا مسیرو هیلو او هوسونو دنیا جوړه کړه. د دې دنیا بنیاد ستا مینې کېښوده او ما د همدې مینی لپاره په نا آشنا خلکو او نا بلده سیمه کې ځان د ناپایه غمونو منګولوته وسپاره.

ستا دپاره مې ستا کلي، ستا غرونه او سیمه وستایل او تاته مې خپلو ترانو کې نه هېرېدونکي او ابدي افتخارات درواړول . »

سیلۍ ورو ورو زور اخیست او تیلره شېبه په شېبه زیاتېدله، غمجن قلم تر ژیړې رڼا لاندې د یوه نامیند شاعر د ژوند وروستنۍ او ریږې اندیښنې داسې پسې لیکلې:

« ښایي هغه وخت چې زما هډوکي خاورۍ شوي وي، هغه وخت چې زما قبر خلکو څخه ورک او هېر وي، هغه وخت چې څو پسرلي، دوبي او ژمي په ماتېر شوي وي

ـ د شعلا پتنګان او د ښکلا مينان به زما خواږه او ترخه اشعار ولولي. ښايي زما اشعار او ترانې د ډېرو ځېږو انسانانو عواطف نرم کړي، ډېرو وژړوي او ډېرو وخندوي، مګر د لوستونکو خوښي او خپګان به ماته هيڅ ګټه ونه لري، له ما سره آسمان خپل ظلمونه کړي وي، سړې او تودې به راباګدې تېروي، د پرديسۍ او خوارۍ سلګۍ به .ې وهلې وي او په بېکسۍ او ناپېژندګلوۍ کې به مړ يم.

رښتيا، آسمان دا بې عاطفې او بې شعوره موجود څومره ظالم او بې پروا دی. نن چې زه د خپل ژوند د ترانو وروستۍ کرښې ليکم ده د شپې په ستورو د حسد پرده غوړولې ده او سندرغاړو حشراتو ته يې ويلي دي چې غلي شئ او ما يوازې پرېږدئ.

تياره شپه، وريځ آسمان او وحسي توفان زما د نږدې مرګ سانې غږوي او د ډېوې ژيړه رپېدونکې رڼا زما ورستيو سلګيو ته هرکلي وايي.

راځئ، راځئ زما ناکامو هيلو چې پدې ورستيو ترخو شېبو کې خدای پاماني سره وکړو او ترابده سره هېر کاندو.

اې زما دردمنو سترګو! يو ځل، آخر يو ځل د وريځو زړه وڅيرئ او ما د آسمان د ستورو سره مخامخ کړئ چې د خپل جمال پرست جوق تنده پې ماتخ کړم.

ای توفاني بادونو! خپله مخه د سهيل خواته واړوئ، ترغرونو، سيندونو او ځنګلو تېر شئ، زمادعمر وير ځپلې افسانې درسرهولېږدوئ او زما د وړ کتوب په ټاټوبي کې يې زما همځولو او دوړ کتوب ملګروته وسپارئ.»

د پرديس ترانه ليکونکی قلم په همدې ځای کې ودريد، توفان د جونګړې کړکۍ ماته کړه او دوه ډيوې يو ځای تپې شوي.

کابل ـ ۱۳۳٦

# د اباسين سپېدې

سپېدې نوې چودلې وې چې اباسين ويده شوي دردونه وپارول او د سباوون زړمې چې د سين له مستو ډېو راغبر ګېدلې ناويلي رازونه وسپړل.

بزګر د خپلې ځېږې په مينځ کې د مهاجرو مرغانو کړنګهار له خوبه راپاڅاوه، سترګې يې ومښلې، په ډډه شو او بيا لکه د بربکيو لمبه انځاپي په خپل بستر کې ودريده.

سترګې يې پرانيستلې، د آسمان په ختيځه څنډه کې يې نظر د سپېدو په سپينه پټاړه ونښت، سره راتاو شو او يوه اوږده دمه يې واخيستله، سپېڅلې هوايي ويده قوتونه په مټو کې وخوځول، له ځپر نه راووت، د اباسين کوږه کوږه او ليونۍ ځپې يې تر سترګو شوې، پاس يې وکتل د نيلي آسمان لويي او درنښت سخت ولرزاوه، د لويديځ په څنډو کې يې د ستورو په آزادو حدودو نظر ونښت او ناڅاپي يې ځان ته پام شو. سترګې يې واوښتې، ګنګـ يې بدل شو، شونډې يې ورپېدې، لاس يې واچاوه او دخپل کميس ګريوان يې تر لمنې پورې وشلاوه. غوښتل يې ځان د اباسين خونړيو ځپو ته وسپاري او د سين په آزادو ځپو کې د اسارت شرمو ونکې ټاپې له خپلې لمنې څخه لرې کاګدي، مګر يوه نامعلوم احساس يې په شونډو باندې د يوې ترخې مسکا ځپه وځغلوله. سترګې يې د سر په کاسه کې راټرخېدې او شونډې يې په خوځېدو شوې:

زه په دې لويي او بې پولې نړۍ کې بندي شوی يم. زما سترګې يې ړندې کړي دي. زما په لاسو کې انګړۍ اچولي او زما په اوږويې درانده پيټې رابار کړيدي. زه د بل لپاره اوسم او د بل لپاره مرم.

لکه په شپې پسې شپېدې راځي او شپېدو پسې لمر راخېږي په بندګۍ او اسارت شپې هم آزادي راځي، مګر د انسان د اسارت شپه د طبعيت تر شپې ډېره اوږده ده.

اوس چې زما په مټو کې ويده قوتونه سر راپورته کوي ګوندې دا تور ځګځيرونه به ماتېږي او دآزادۍ د لمر ختو وخت به را نېږدې شوی وي.

راوخېښه، ای مقدسه لمره راوخېږه؛

پر پرده چې زه د اسارت تو ځګځیرونه پخپلو پښو او لاسونو کې مات کړم.
پر پرده چې په دې آزاده نړۍ کې آزاد اوسم، آزاد ژوند وکړم او آزاد مړ شم.

۱۳۴۱

# ژيړې پاڼې

هر کال همداوخت کله چې د ونو پاڼې ژيړې شي زما په روح کې د غلي شوی تور توفان ځپې يو ځل بيا سر رااوچت کړي او ما له ما څخه وباسي او لکه له زاکه وتلې بېړۍ هماغه ځای ته مې بوزي، له کوم نه چې دې ځای ته راغلی يم.

ډېر کلونه وړاندې زموږ د کلي په ختيځ ډاک کې د کوچيانو کډې ښکته شوې وې. د کلي د ماشومانو ياراني له کوچي ماشومانو سره نوی رنګ او بل کيفيت پيدا کړی و. هر سبايي به د لمر له تودوخې سره سم زموږ او کوچي ماسومانو ډلې په خوني خوړ کې سره يو ځای کيدې، کله به تر غرمې هماغلته د خوړ په شګو او خاورو کې لوبيدو او کله به د کېږديو چاپيريال ته ننوتو د ميږو، وريو او جونګيانو په ځورولو او ترهولو به بوخت وو.

ماشومتوب او د هغه د طلايي شېبو تصورات، منډې رامنډې، پرله پسې جنګونه او ژر پخلا کېدل، د کوځې، خاورو او ختو شوق زما لپاره يوه ښکلې بې انجامه دنيا ده چې په رايادولو يې هيجاني کېږم او داسې راښکاري چې زه بيا ماشوم شوی يم.

هغه وخت زه لا د مينې او هجران په نعنی نه پوهېدم او ما لا د عشق شربت نه و ذښلی. يوه ځې يوه خوشالوونکې تودوخه راکې پيدا شوې وه. د نجونو مرکې او ناسته به ښه راباندې لګېده. ورو ورو مې د خپلو همځولو لوبې پرې ښودلې او د کېږديو له نجونو سره مې مينه زياته شوه ؤ د لوبو ملګري مې خوښ کړل او له «لښتې» سره له خوړ نه هغه خوا د وريو او سيرليو لوبغالو ته ورواوښتم. څو څو ځله مې «لښته» له کېږدۍ څخه کلي ته راوسته او په وار وار زه له هغې سره کېږدۍ ته لاړم.

موږ به په ګډه د دوی کېږدۍ ته نيږدی د شګو کورونه جوړول. مازيګری به زه ترې راجلا کېدم او د خپلې کلي عمومي دروازې ته ته به راستون شوم. په وروستيو ورځو کې مازيګرنی بيلتون راته ګران شو. کلي ته په نفرت او کراهت بيرته راګرزيدم. زړه به مې غوښتل چې هماغلته د تورو کېږديو په ورغاليو کې له «لښتې» سره پاتې شم.

«لښتې» کرار کرار زما په زړهکې تاندې وغځولې او داسې پياوړې ونه شوه چې

زما په ټول وجود کې یې ځانګې او ولې خپرې کړې.

یوه ورځ چې مور دواړه د کلي لورته راروان وو ومې لیدل چې د «لښتي» ستر ګې له اوښکو ډکې شویدي، خپل زړه ته مې پام شولکه بندي مرغۍ په غورځېدو او ټوپونو سر شو.

ـولې لښتي ! ؛ ولې راړې ! ؟

ـته یې نه وینې چې د ونو پاڼې ژیړې شوې دي ؟

ـهو وینم یې ، څه شوي دي ؟

ـزموږ د کډو وخت رانږدې شوی دی . موږ به له دې ځای نه ولاړ شو .

ما هیڅ ونه ویل او موږ دواړه په ژړا شوو . ملر موږ نه پوهېدو چې ولې ژاړو . ژیړو پاڼو زموږ په خولو مهرونه ولګول. ساړه بادونه راوالوتل او موږ یې سره جلا کړو .

دوه ورځې وروسته د کوزیانو کډې بار شوې. واشومان او زرلان یې په بارونو د پاسه وتړل او په یوه ستوې لیکه کې د پراخ بیابان پر نړۍ لاره د ختیځ لورته وکوچېدل. زه ورته ولاړوم، ژړل مې، هیچا زما پر مخ لاس تېر نکړ او راپام یې نه شو . د لومړي ځل لپاره ما د بېلتون ترخه او یوځوونکې مزه وازمویله.

لاتر اوسه چې په سر کې مې سپین ویښتان پیدا شوي دي د ونو ژیړو پاڼوته رېږدم او هر کال یو ځل ورته ژاړم .

کابل ـ ۱۳۳۹

# مرور شپون

د مازيگر ژېړ او غمجن لمر ورو ورو د هوارو دښتو لمنو ته راکوزېده، د کلي له شاوخوا ډاگونو څخه د مېږو او وزو رمې کلي ته راستيندلې، د پراخو دښتو د پاسه دوړې او بادونه روان وو، په خړه او خيرنه هوا کې د لمر تېکلي لکه ژېړه دايره بريښېده.

«تور» د کلي وړاندې د جومات تر څنگ له ملا امام سره ولاړ و.

يوه زړه برستن او شليدلی ليمځی يې په شا پورې تړلي او يوه پيوندي بنيې يې تخرگ ته اچولې وه، خړ سپی يې د لارې په مينځ کې پروت و، لويه خوله يې پرانيستې، ژبه يې رااېستلې وه او ژر ژر ستمېده. ناڅاپي به په ملا باندې وربرگ پو او ورته وبه غورېده، بيا به تور ورته په غصه شو او له ملا څخه به يې منې کړ.

زه نه پوهېدم چې تور به پخپله اوږده مرکه کې له ملا سره څه ويلي وو، مگر وروستۍ خبرې يې ډېرې درنې او پريکړونې وې.

تور وويل: «ملا صاحب! ما خپل هلکتوب او ځواني په همدې خلکو کې تېر کړل او ډېر کلونه مې د دوی رمې وپوولې.

هر ځل چې د کلي په رمو او اوښانو غله لويدل زه لومړنی سړی وم چې په هغوی پسې <u>ووتم</u>. کله چې د دوی د رمو په ورشو کې يو خوني پړانگ پيدا شو زه وم چې پسې او ورځې مې يو کړې، تر څو مې هغه ونه نيو خوب رانغی او سرمې ونه لگاوه.

بيا کله چې غلو د کلي په شاوخوا لارو داړې اچولې زه وم چې خپل سر مې په لاس کې ونيو او د غلو مشر مې کلي ته تړلی راووست.

زه وم چې بې بوټونه مې بوټې وکړل، له بې کور سره مې ختې وکړې او له يتيمانو، کونډو، رنډو سره مې رمې وپوولې.

بيا زه وم چې له وږيو سره مې خپله ډوډۍ نيمه کړه او تږبو ته مې په وچو ډاگو کې اوبه ورسولې، له مريضانو سره مې شپې سبا کړې او له ويرجنو سره مې وژړل. مگر کله چې وږی شوم، ناجور شوم، ناداره او بربنډ شوم له هيچا څخه مې ونه غوښتل او هيڅ لوري

ته مې لاس و نه غځاوه.

داسې وخت راغی چې زه ځانګړي ژوند ستومانه کړم او ومې غوښتل چې پدې خلکو او عزيزانو کې ځانته د ژوند امسا پيدا کړم. ټولې دروازې زما پر مخ وتړل شوی، هيڅ مور او پلار پيدا نشول چې ما زمني او هيڅ پړونی پورته نشو چې ماته خپل سيوري لاندې پټ کړي.

همدا وخت و چې ما دا کلي او د هغه خلک وپيژندل.

افسوس ! زه نه پوهېدم چې دوی د ميړو، رمو او اوښانو کتارونوته سر ټيټوي او د خلکو خدمتګار نه پيژني.

زه نه پوهېدم چې زما شجاعت، زما توره، زما وفا او زما اوږده خدمتونه ددې خلکو مينه نشي ګټلای. مګر اوس چې لا زما په متو کې د ځوانۍ مستي نه ده غلې شوې، تر او سه چې زما منګولې او مړوندونه زما لپاره خوځېدای شي او لا تراوسه چې زړور او پياوړې پلې لرم بايد له دې سيمې څخه ووزم او خپله ځوانۍ د خپل نږدې سپين ږيرتوب لپاره سترې کړم.

زه نه راستنيږم، ځم او خامخا ځم . داسې ځای ته ځم چې ددې ظالمانو د رمو ګردونه او د کلاګانو سيوري راباني ونه لوېږي.

داسې ځای ته ځم چې هلته د ميږو او اوښانو بيه تر زړورو او زړهسوانډو خدمتګارانو جله نه وي ...»

تور خپلې خبرې خلاصې کړې او د دتو په ځوځانو کې په بې لارې لوري روان شو.

لاتراوسه چې ډېر کلونه تېر شويدي د ماښام په تياره کې د تور دو دده شپې هغه منظره رايادېږي چې‌بيو په بل پسې په وچ ډاګ کې مخ په وړاندې تلل او د ماښام غمجنې تيارې ورو ورو پخپلو پردو کې ورنغښتل.

کابل-۱۳۳۸

# قهرمان څه وویل؟

انځر له انگریزانو سره د آزادۍ په جنگـ کې لگیدلی و. د توروا سکڼ د پاسه د وینو لښتي رابهېدل. مخ یې تر خولو لاندې لوند خیشت او ستر گې یې لکه د څېړۍ سکروټې تکې بریښېدلې. یوه ملگري خپل لنگوټی سوی و او د انځر داوږې پرهار ته یې زړو کې برابرول. یوه بل ملگري د پټۍ د ایښودلو لپاره ل. څوله. قهرمان انځر شور او فریاد نه کاوه، مگر په پراخ تندي کې یې د درد او سوي په وجه گونځې او ککښې پیدا شوې وې. تورې اوږدې څڼې په سپیره مخ باندې خورې ورې پرتې وې. خدازده د انځر په زړه کې څه و گرزېدل چې په سوې سایې له پردل څخه پوښتنه وکړه:

ـ پردله! پوهېږې موږ د څه لپاره مرگو ته غاړه ږدو او دا جگړې کوو؟

هغه وویل: ـ ددې لپاره چې پرنگیان مړه کړو او از غازیان شوو!

یوه بل ملگري وویل: ـ ددې لپاره چې توریالی خلک باید جگړه وکړي او چاته سر کښې نږدې. انځر د نفې سر وښوراوه، بیا په ډډه شو او ویې ویل:

ـ موږ ددې لپاره جگړه کوو، دا حقیقت ثابت کړو چې ستر یرغلگرو ملتو نه په زور او جبر پر کوچنیو سوله غوښتونکو ملتونو باندې بری نشي موندلای او د خلکو وحدت په الوتکو او ټانکونو گن ماتېږي.

قهرمان دا وویل سریې ولگاوه او مړ شو.

دوه کاله وروسته، یعنی هغه وخت چې د افغانستان په غرونو، رغو باندې د آزادۍ وږمه چلیدله، یو مشهور نقاش د آزادۍ په جگړه کې د یوه زخمي زلمي تصویر وکیښ او ترې لاندې یې ولیکل:

موږ ددې لپاره جگړه کوو، دا حقیقت ثابت کړو چې ستر برغلگرملتونه په زور او جبر پر کوچنیو سوله غوښتونکو ملتونو بری نشي موندلای او د خلکو وخدت په الوتکو او ټانکونو نه ماتېږي.

کابل ـ ۱۳۴۰

# واقعي قهرمان

د لویې لارې له اړخ سره د اوړي تاوده لمر ته لکه غر ناست و. د خام سړک له مخې د موټرونو دوړې پورته کېدې او لکه له غره نه د پسرلي وریځې او لړې ـ ترې راچاپېر شوې وې.

زه لا ډېر نه وم ورنږدې شوی چې دی لکه د ځوځانو لمبه ګړندی په خپل ځای کې ودرید او ژور ژور یې راته وکتل. لوړه ونه، اوږده څنې، ارت تندی، ځېږې وروځې او توژې فتې ستر ګې یې آشنا راته ښکاره شوې، خو ومې نه پیژانده. د مورو ځپلی یې خاورو پ. ښاې وې او د پریږو پوندو چاودنه یې له ورایه ښکارېده، د لستونو څنګلي یې سورۍ شوې او د کمیسه غاړه یې خیرو خوړلې وه. یو زوړ څادریې په کینه اوږه پروت و او له شانه یې ښکته ځمکې ته ځوړند شوی و.

په خړ پرتا ګه کې یې څو ځایه تور او شنه پیوندونه ل.یدلي او پایڅې یې ترانګې ترانګې په څپلیو راپرتې وې. ماته ځیر و او ځنګه چې ورنږدې شوم سلام یې راواچاوه. د سلام ځواب مې ور کړ. نو ک مې وینو او پوښتنه مې ځینې و کړه :

ـ ماته خو آشنا ښکارېږي !

ـ نه ، آشنا به دې نه یم ، زه له ډېر لرې ځایه ښار ته راغلی یم .

غلی شوم او ترې زخو ځېدم، دده په څسر خلک ډېر دي چې د ښار په کوڅو کې ګرزي او درویزه کوي، دی به هم دغسې یو شی وي، پرې یې ږده زه خپله لاره کوه.

څو ګامه لا وړاندې نه وم تللی چې کاته مې نابلد مساپر ما پسې رارهي دی، شکمن شوم چې څه مطلب به لري، مخ مې ورواړاوه، پوښتنه مې و کړه :

ـ زما سره خو به دې څه کار نه وي ؟

ـ هو شته مې.

کاته مې چې څه ویل غواړي او ښایې سوال به کوي، خو شرمېږي او له خولې یې نه راباسي، نو مخ مې ورواړاوه.

ـ مه شرمېږه ! څه دې ویل ؟

ـ خرڅې نلرم ، وږی یم .

جیب ته مې لاس یوړو، د لسو روپیو کاغج مې راویست او ورت ومې نیو . دی په بریتوکې مسکی شو او د نفې سرېې وښوراوه، بیایې له غروره په ډکه لهجه وویل :

ـ ما تر اوسه پورې د ګدايي ډوډۍ نه ده خوړلې او اوس یې هم نخورم.

د نا آشنا مساپر خبرې لکه د برېښنا څپه زما په پلوکې وځغلیدې، غوني مې ځیږه شول او ستر ګومې پړق وهل، د غرو انسان مې په دماغ کې دومره ستر شو چې د ټولو لویانو ځای یې زما په مغزوکې ډک کړ.

هر څه مې په نظر کې بل شان شول، خپل ځان مې تر پام کوچنی شو او سخت وشرمیدم ـ له خپل عمل نه پیښمان شوی وم ؤ خو نه پوهېدم څه وکړم . پوښتنه مې ځنې وکړه :

ـ عزیزه ! نو ته څه غواړې ؟

ـ زه کار غواړم ، زما مځې از منګولې ډېرې پیاوړې دي او کولای شي زما ګیډه مړه کړي .

ـ څنګه کار ؟

ـ داسې کار چې زه یې کولای شم ـ لکه کاریز وهل، پخڅهؤ لرګي ماتول او نور کارونه !

ـ افسوس چې دتسې کارونه ما ته معلوم نه دي .

ـ نو دا څنګه شي ؟ ما پرون هم ډوډۍ نه ده خوړلې ؛

زه چې د پردیس انساني لویوالي سخت لاندې کړی وم سمدستي مې بلنه ورکړه :

ـ ښه لاره داده چې له ما سره لاړ شي او تر څو کار پیدا کوې له ما سره پاتې شي !

ـ نه ، نه دا کار نه کوم .

ـ آخر ولې ؟

ـ زما مفته ډوډۍ تر ستوني نه تېرېږي، هسې نه چې دامې عادت شي .

دایې وویل او راڅخه روان شو ، زه هلته هک پک ودرېدم او تر هغه مې پسې کتل ،

تر څو په تاوراتاو کې له نظره وووت . ډېرې خبرې چې باید ورسره کړې مې وای نا ویلې پاتې شوې. ډېر پښیمان وم چې زلې مې ښه پوه نکړ، خو د خپل خپگان په پای کې پوه شوپ وم چې ما د خپل هېواد یو حقیقي قهرمان ولید .

کابل۔ ۱۳۴۱

# د پېرېو مساپر

د زمان په ناپایه سمندر کې پر مخ ځي ، د ملر چینې ته د رسېدو په هیله د تاریخ د لرې او نامعلومو پړاوونو پر لور لامبو وهي . د پېږو او پیړیو یاغی ځپې یې پرله پسې پر مخ او تندي وهي ، خو دی مخ نه اړوي او د یاغي سمندر د څپو په غرو او غونډیو کې د توفانونو د قهر او غصې پر لیکهؤ د وحشي او بېرحم باد تر تازیانو لاندې په سړه سینه د خپل سرنوشت ساحل ته ورښویېښي . د پراخو هلو ځلو او د اوږده سفر ستړیایې د لاسو او پښو په غړبو کې شنډوونکې دردونه او سوی پیدا کړی دی ، ستر.ې یې د سمندر مالگینو اوبو عیبجنې کړې او حساس غوږونه یې د توفان په چیغو او کوکو درانه شویدي . ورمېږیې درد کوي ، د ملا تیر یې څړیکې وهي او ستوماني یې د وجود په ټولو جراتوکې ننوتې ده .

په تورو لړو پوښل شوی آسمان لکه تور جلاد پاس په سر ورته ولاړ دی او د توفان له هر ټکر او هر هیبت سره خپله بریښنده توره ورته ځلوي .

یاغي سمندر د توفان په مستیوکې کله کله د خپلو گردابونو خولې خلاصې کړيؤ د لامبوزن لاس او پښې سره وچرموړي او د خپلې خیټې ژور تل ته یې ښمیباسي ، خو دی بیا خپلې متې او منگولې د سمندر په لړمانه کې په ډېر زور وخوځوی او د ډوبوونکې ښتمار له ژامو څخه د ژوند د دوام په مقصد لکه د افسانو لال بېرته راووځی او د څپو په لارورو کوونکې ځنگله کې دوباره د لمر چینې ته د رسېدو په هیله د رازیږېدونکې زمان د ساحل پر لوري ورښویېږي او پر مخ ځي او یوه ورځ به خامخا د لمر او رڼا چینې ته ورسېږي. هو ، خامخا به دا د زمانو د اوږدو او سختو لارو مساپر، دغه زما وظن، زما نه تسلیمیدونکې او قهرمان وطن د تاوده لمر غېږ.ې ته ورسېږ.ي.

په وړاندې دتوفان او ځپو د ایاولو په لیکه !

په وړاندې، د لمر د چینې پر لور !

کابل ـ ۱۳۵۷.۲.۱۱

# د تاریخ دریځ

نارینه ته یې و خندل ، پخپلو منارو ستر گویې د هغه وړې ستر گې ښکار کړی . پښې یې د شهوت جلال او جبر وت ولېږزولې او د تاریخ له دریځ نه د ښایسته کوډ گرې پر لور ور کوږ شو . د دریځ کږه شوې دړه د گړنگونو پر خوا ورشیوه شوه او خپل څښتن یې وښویاوه . هغه له دردوونکو لویدو وډار شو، هیبت ناکه زیغه یې وایسته او را په شا شو، خپله موازنه یې بېرته سمه کړه. کوډ گرې ښاپېرې په لو څو اوږو باندې د خورو څڼو ځپې راخوشې کړې او د خطاوتي اتل پر اراده یې نوی یرغل ورووړ. د هغه بڼه واو ښته، دوه گامه ورنېږدې شو، له خلکو څخه یې مخ واو ښت او غېږېې د وژونکو عطرو په وږمه ډکه شوه. د تاریخ دریځ چې دی دی د وینو او اورو په واټ ورر سېدلی و ، پې را کوږ شو او د مبارزې د ځغلنده آسونو پښو ته راولویده. سپرو د ځغاستې کرښه تعقیب کړه او بل سپوریې د تاریخ پر دریځ ودراوه. غرونه او درو، ونو او سینونو هغه ټول کسان هېر کړل چې خپلو هوسونو د ځغاستې له کرښې نه وایستل او د ننگـ د آسونو نه یې وغور ځول .

د تاریخ پر دریځ باندې یوا ځې هغه څوک ځان نیولای شي چې زړه او ځیگر د حرمان سو ځوونکو لمبو ته ونبیسي او د میړانې د ترخو زهرو څښلو ته غاړه کېږدی، د زیارایستونکي انسان د تاریخي هوډ لپاره د خپلو غرایزو سر کش ښامار راتم کړي او ور سره د تاریخ د شخړو پر او چت دریځ باندې ودرېږي.

د تن پروری او عیاشی لاره او د بشریت لپاره قربانی لاره سره جلا دي. د خلکو د قدرت دړه او دریځ د محرومیو او نامرادیو تخت دی؛

د خلکو د بریو تاج د اغزیو خولظ ده، هیځکله د قدرت لیوالو او د شهرت لیونیو ته نه په سر کېږي.

د تن پروری او قربانی واټونه سره جلا دي. هغه څوک چې زړه د بدمرغیو په سکروټو نه شي اېښولای او د تباهیو د لمبو بټی ته نه شي دریدلای د هغوی لاره په لمریځو کو څو او د میړانې پر نیغو پر ښو نه تېرېږي او سفریې د لمر ختو چینې ته نشی رسیدلاین.

# لارويه !

لارويه ! ولې خپه يې او د څه لپاره غمجنې سندرې بولې ؟ ولې د لارې له اغزيو نه شکايت کوې او له کوهيو او ګړنګونو څخه ويرېږې ؟ ولې له ستوماني نه فرياد کوې او د لارې له سختي نه ګيله لرې ؟

څله هر مساپر ته د پښو تناکې ښيي او له هر لاروي نه مرسته غواړي ؟

څله د رهزنانو جفا نشي زغملای او ولې د مينې په اوږده لاره کې بې صبرې کوې ؟

پر بېړده چې تالندې خورې شي ؛ پر بېړده چې خونړي بارانونه واورېږي ؛ پر بېړده چې سيلاوونه په تياروغرونو کې ستا مزل مشکل کاندي؛ پر بېړده چې شيطانان د لارې په پيچومز کې تاته دامونه او تلکونه کېږدي؛

دا ټول به دمينې په اوږده او ستومانوونکې مزل کې تاته د سختيو د ګاللو او د هدف د تعقيب زغم در کاندي. دا به تا وازمويي او پر غمونو به د بريدو چم دلرو ښيي.

ته بايد په باد او باران کې پر کوهيو او ګړنګونو باندې د تېرېدو او د انسان په غمونو باندې د بريدو ترانه بشپړه کړې ؛

ته بايد د زيار ايستونکې انسان د نوی ژوند حماسه هست کاندې ؛

ته بايد د ويرې پردې وڅيرې او د هيلو زرين مزی د ربړ ګالونکې انسان د سفر په لاره کې وغځوې ،

ای مقدسه لارويه ، پرمخ ځه ، پرمخ ځه او د زيار ايستونکې انسان د نجات حماسه بشپړه کړه !

کابل- ۱۳۴۷.۱۰.۲۲

# لامبوزن

ټکنده غرمه وه چې لاروی د کونړ د سین غاړې ته ورسیده. خولې یې لکه لښتې په مخ راماتې وې. لینډیو او ملایې درد و کاوه او سخت ستومانه شوی و. د لوخو پښو تلي یې چې د لارې شګو او تېږو وهلي وې پولۍ شوې وې. شاوخوایې سترګې وغړولې، هاته د یوې هوارې ډبرې په سر کښیناست، د شا پیټی یې په ډېره سختۍ له اوږو جلا کړ. خولۍ یې وایسته او د مخ خولې یې پې پاکې کړې. اوږد او سیای یې ویوست او په راغلې اوږدې او نړۍ لارې باندې یې نظر وځغلاوه. په بریتوکې مسکی شواو د هوارې ډیرې په مخ ستوني متاغ وغځېده. کاته یې هالته بر د واورینو غرونو له شا څخه یوې تورې وریځې لکه چغلګر بنیادم غوږووونه راپورته کړی وو، پاس، ډېر پاس د آسمان په نیلي میدان کې د ریو ټپوسانو په یوه دایره کې اتڼ واهه. د سین موزیک او سړې سپلۍ د مساپر ستومانه پلې چاپې کړې او د خوب لیونیو ځپوته یې وسپاره. چې ستر کې سې سره ورغلې خپله «سپانده» لوریې په خوب کې ولیدله، سپانې په ژړا ژړا کې ورته وویل:

داداګله! زه ډېره وږې یم... له هغې ورځې چې ته تللی یې ماته چا د جوارو وږی نه دی راوړی...

لاروی ویښ شو او بې ارادې په ځای کې ودرید، ټول وجودیې رپیده او دوه څاڅکي اوښکې یې د سترګو په ځیږمو کې غوټه شوې وې. ځان یې بیدار کړ، جامې یې وایستې او کوچنی ژی یې پوکړ. پیټی یې واخیست؛ د اوبو څنډې ته یې راښکود، په شونډو کې یې ورو څه وویل او ځان یې د سین په اوبو کې لاهو که.

کرار کرار د اوبو پیاوړي روته وژسم شو او اوبو پخپله سبنه باندې تم که. کوچني ژي د درانده پیټي زغم نه درلود، لامبوزن یې ستومانه که، کښنته کېږه او پورته کېږه، دلته دې ځپه پر مخ لګېږه او هلته دې لږ اوبه په خوله ننوزه. په دې جنګ او جګړه کې لامبوزن د سین له هواره لیکې نه ووت او د یاغي ټپو سیمې ته ورګډ شو. د اوبو یو سخت ټکان د ژی او پیټي د لمبوزن له منګولو څخه وشکول، سخته ویره ورو لوېده خو چې هر لورې ته یې

کتل او به وي، لاندې او به ، پاس او به، ځمکه او به او آسمان او به. د نظر په هینداره باندې یې یوه ناپایه خړه دنیا راچاپیر شوه. بېوزلې د خپل ستومانه او ترخه ژوند اوږده لاره لکه برېښنا په یوه ګړندۍ تښتیدونکې شېبه کې تر ستر ګو تېره کړه او ورپسې یې د او بو په تل کې یو مستانه اتڼ واچاوه او د بې نښانه او بو وړیو د کاروان لیکه پسې ورو خو ځېده !

# پټه مینه

د پسرلي ورږمې لکه زړه سوانده مور د دښتو د شنیلیو په څنګو ورو ورو ګوتې تېرولې. یوه سپینه وریځ د نیلي آسمان په سمندر کې د سپوږمۍ تر پلو شو لاندې لکه د بلورو بېړۍ ځنځیري غرونو د پاسه دلویدیځ افق خواته بهیدله. د شرنې په شګلنو او پراخو ډاګو کې د کوچیانو تورې کېږدۍ پلنې شوې وې او د هغوی د بې شوره محیط کراري به کله کله د سپیو غپا ماتوله. په داسې یوه شپه کې هالته لرې د دښتو په ورستۍ څنډه کې د غرونو لمنې ته نږدې د خانانو د برجورې کلا تر مخ مست اتڼ روان و.

د څیړۍ د تیرانو دلمبو وړانګې د کلا په برجونو او دیوالونو داسې خوځېدې لکه د مینې سوځوونکې هوسونه چې د نوکاره عاشق په مغزو کې ټسې وهي او پر هر شي ورځغلي. د خنداوو کتهار، د ډولونو شور او د اتڼ جوش د ټولو زړونه تاوده کړي وو.

مغرور زوم او دولتمند خسر بر سر په وریښمینو بالښتونو تکیه وهلې وه او داسې په خوشالتیا کې ورک وو چې خپلو ښوا که او سپکو خرکاتو ته یې پام نه رااوښت.

ډک چلمان نکته، پورته ځغلیدل، د چاینکو او پیالو شرنګی خوریده، شمله دار وریښمین لنګوټې او زرین واسکټونه لاندې، باندې رااوښتل.

دټوپکو ډزواو د آسونو شنهکي دخانانو واده ته ترهرواده زیات ښایست اودرنښت ورکړی و. خوښۍ په هرچا وزرخواره کړی وو، بیا په تېره پر زلمیانو چې پرله پسې نڅېدل ـ خو هلته پو داسې زړه هم و چې د غمونو وریځې ترې راتاو شوې وې او د خپل ناکام هوس د حسرت په لمبو کې سوځېده. دوو سترګو او ښکې تویولې او د دې او ښکو پټولو لپاره د شپې تیاره او د برجونو سیوري مناسب پرده داران وو. دې غم ځپلې زړه او ویرجنو سترګو د داسې یوه مزدور ناکام عشق تراژیدي غږوله چې دولس کاله یې د خانانو په دروازه کې بې مزده خدمت کړی و. دده توره، دده خدمت، دده ښه ځوانۍ او روغ صورت ګرد سره ددې مینې تر خامې تمې جار شوي وو. ده ګمان کاوه چې د خانانو زړونه به هم دده د زړه په څیر وفادار، مهربان او له عاطفې ډک وي، مګر اوس له دولسو

کلونو وروسته پوه شویدی چې په خطا تللی و. هیڅکله د خانانو او مزدورانو اخلاق یو بل ته نه دي ورته. هغه سخاوت او میړانه چې د یوه مزدور په کړو کې په طبیعي توګه شته دي هیڅ خان یې نلري او نه یې لرلی شي. د مزدور او خان تر مینځ هیڅ وړ تړون نشته دی، یوازې د راکړې او ورکړې عمل دی چې دا دوه یې سره یوځای کړي دي. مزدور په دایمي توګه خان ته د خپلو خولو محصول ورکوي او خان تل تر تله د مزدور د عمل د برکاتو غلا کوي ـ همدا دائمی سخاوت او دائمي غلا ده چې دوی سره نږدې کړي دي.

د «پیرک» ټولې هیلې له خاورو سره برابرې شوی وې، لکه لیونی د برجونو سیورو کې ننووت او پټیده، مگر د غمونو له تیزو سترګو څخه یې خلاصون نه وؤ او نهکې یې تویولې، خو زړه یې نه تشېده، تنې یې خلاصولې او دمه یې نه جوړېده.
انسان د هر څه نه تښتیدای شي، مگر د خپلو عواطفو او احساس څخه د تیښتې لوری نلري.
خلکو خپل اتڼ کاوه او ډولونو ته ځر خېدل، هیڅوک د پیرک د ګوګل په لمبو نه و خبر، نو ځکه یې دا کوشش ونکړ چې دده له ډوب شوی زړه او ناکامو هیلو سره مرسته وکړي او څه نه څه د یوې شپې لپاره دده د او ښکو سترې شوی کاروان تم کاندي.
د خانانو درنه کلا لکه سمندري بیړۍ د شپې په څپو کې ورو ورو د سهار ساحل ته نږدې کېدله، مگر څوک نه پوهېدل چې دا بیړۍ به د دوی یو دردمن او فداکار مزدور ډوب کړي.
سهار راورسیده او سپوږمۍ د تورو او لغرو غرونو شاته وښوییده، ډولونه غلي شول او اتڼ ودریده. د شپې دوروستۍ شېبې سرې سپلۍ د سپېده چاود زیری خور کړ، مشر خان کلا ته راستون شو او په پیرک یې نارې کړې، خو هغه ځواب ورنکړ.
میاشتې تېرې شوې او کلونه واوښتل، خو هیڅ څوک پوه نشو چې هغه وفادار مزدور څه شو او چیرې لاړ، یوائې د دښتو ځوځانو او وحشي بوټو د هغه ساندې اوریدلې وې چې یو وخت به یې د راتلونکو پېړیو ځوانان واوړي او پې پوه شي.

کابل ـ ۱۳۴۱

# بوره

د زواکې کلي ته مړدې دپارک د خوږ په غاړه د کوچیانو یوه کوچنې کلي اړولي وو. بې کوره او سرگردانه خلکو په بې ښتنه ځمکو باندې للمی کرل او د پسرلي شپې ورځې یې د باران په هیله دلته تېرولې.

هیڅوک نه پوهېدل چې باران او ځمکه به دې سرگردانو بې وطنه پوونده وته د خپل سخاوت له خزانو څخه څه راباسي که یه؟

کله به چې د هوار لویدیځ په پراخه سینه د غروب سور پړونی وغوړیده لمونځ گذارو ښځو به خپل سرونه سرتور کړل او خدای ته به یې د باران سوالونه کول. سخت کال راغلی و ، د میږو پیې وچې شوې او غواو به له لوږې رمباړې وهلې. خلکو به ویل چې د قحطی د آخرزمان علامه ده او قیامت رانږدې شویدی. د ژوند نه ټول نامینده شوي وو. هر چا به د آخرت دعا کوله. په کلي باندې ورځ تر ورځې د ویرې او نامیندئ تیاره غوړیدله او له دې تیارې سره هر څه بدلیدل. یوازې د کلي د ماشومانو یارانه او هلې ځلې یو راز پاتې وې. بربنډ ماشومان به له لمر ختو تر لمر لویدو پورې د کېږدیو خواته په لوبو بوخت وو او چیغې به یې وهلې.

یوه ورځ چې په آسمان کې تورې وریځې راپیدا شوې وې او سوړ باد چلیده ماشومان تر یوې کېږدئ لاندې راغونډ شوي وو، د منډو ځای خبرو او خندا ونیو او مرکه پیې توده شوه. یو ځل سورگل چې لکه د سین کړي ژونغوزي په سیر سرتر پایه لوڅ لپړ و، د دلې مینځ ته ورټوب کړ.

ـ غلي شئ؛ زه یوه پوښتنه کوم!

نر هلک او ښه ملگری و ټولو غوږ ورته ونیو. ده پوښتنه وکړه:

ـ دا زموږ باچا څه خوري؟

هلکانو شور بگت جوړ کړ؛ یو ویل نغن، بل ویل غوښه، دریم ویل شودې غوړي، چا ویل پوڅه او ځینو ویل شوروا .

سور ګل له شور نه وروسته د نفۍ سر وښوراوه او ویې ویل :

دا ټولې خبرې دروا غ دي.

ګردو ماشومانو په یوه ,واز وویل :

ـ نو ته وو ایه، ته وو ایه !

سور ګل چې د غرور احساس ورپیدا شوی و په جدي او قاطع لهجه یې وویل :

ـ بوره !

هلکانو په چوپیا کې یو بل ته سره و کتل او تورپیکۍ سمدستي پزښتنه وکړه :

بوره څه شی دی ؟

سور ګل وویل

بوره سپینه خوږه شګه ده، په خوله کې ویلې کېږي او چې لمر ته و نیسې لکه بکره ډېره ځلېږي.

نه کلن پردل چې غټې تورې ستر ګې یې په اسکرلي مخ کې لکه سوی عقیق ځلیدلې د کنډېدۍ له برې خونه راټوب کړل، د سور ګل مخ ته ودرید او په لوړ آواز او ګړنیو خبرو کې یې ورته وویل :

بوره ډېرا خوږه ده ـ تر ګوړې هم خوږه ده ـ کانه !

سور ګل د تایید او مننی سر وښوراوه.

شپږ کلنه سپانده سور ګل ته ورنږدې شوه او په نیولي آوازیې پوښتنه وکړه :

تا بوره لیدلې ده ؟

هغه وویل :

هو ما لیدلې ده !

ـ دا بوره و نه لري که بوټی ؟

ټوله نارې کړې :

و نه ، و نه !

یوازې سپانده وویل :

بوټی .

سور گل وخندل :

نه ، نه ! دا ټول دروا غ دي . بوره لکه واوره له آسمانه رااوري.

ټولو دا خبره ومنله، خو په دوی کې د بورې د ليدلو او خوړلو هوس پيدا شو . سور گل ملگروته وعده ورکړه: که زما مور بل وار ناروغه شوه او ابا کورته بوره راوړه ټول به خبر کړم چې زمور کېږدۍ ته راشي او ويې گوري .

ښرنه ۱۳۴۶

# بزکشي

د خان آباد د دورې د پاسه، هوايي اډې ته نږدې زرگونه ننداچيان راټول شوي وو. له لرې نه مې د يز کشۍ د آسونو چکۍ[٦] تر سترگو شوه، خو کله يه چې د کوم زړور چاپ انداز او پياوړې آس د منگولو او منډو بخت سره برابر شول، نو د آسونو چکۍ به ماته شوه او ليونی سيلاب به ترې راووت چې نه يې لوړه کته او نه يې ځوره، نه يې کنده او نه يې پاڼ، په هره شي ورته او په هره خوايې دانگل.

بزکشي لوبه نه ده، له مرگ سره تمرين کول دي او له هغه نه د ژوند د چم زده کوونه ده، يوائې زړور او مصمم زلميان دا لوبه کولی شي. کرار کرار ور دمخه کېدم، د للمو په کروندو گره کې په يوه آس برابر شوم چې د يوه دنگـ او زلمی ازبک سرته ولاړ دی، هغه د خپل آس سيوري ته په شنه لنده ځمکه باندې اوږد غځېدلی و، داسې اوږد لکه دمه چې ځني ختلی وی. د اوږدو موزو په پوندويې د ختې ټاپې ناست وو. د پومبې ازبکي شلوار او پې د پاسه يې پرېږه د مالوچو گوپيچه[٧] اغوستې او يو سور دستمال يې په ملا کلک ترلی و.

په شوندويې تو خروکی ناست وو، مخ او غبرونه يې دوه، درې ځايه سگه شوي او وينې شوي وو. پهسرباندې يې يوه سره گيتاړه تړلی ا. ستونی ستاغ پروت و. آس يې ډېر ستومانه ښکارېده، غاړه يې ښکته خواته ځوړنده کړې او لنگريې د شا په کښه پښه باندې اچولی و. په اوربوز باندې يې د پسرلنيو مياشو او مچانو ورانه کېدهوم.ر خوار کي له ستړيا نه لکۍ نشو خوځولای. داسې ښېحر کته په يوه ټاکلې زاويه زلاړو چې لکه دی نه وي او مجسمه يې وي. ډېر ځله د داسې ظاهري او سړو چوپياو شاته لوی غمونه او ترخه واقعيتونه پراته وي.

زه له همداسې يوه سپاره سره مخامخ شوی وم، زه دې پوښتنې ايران کړی وم دې

---

٦ ـ چکۍ ـ انبوه

٧ ـ گوپيچه ـ پرېږه لنډه چپن

دې ځوان ځنګه زړه له لوبې پرې کړی او دلته لری بې له دې چې لوبې میدان ته ور و ګوري لکه مړی وچ کلک پروت دی. بز کش او دومره سوړ ؟ ! په دې کې وروړسېدم. زما د پښو په آواز را په ډډه شو. سري خوبولې ستر ګېږ راواړولې. آس غوږونه څک کړل او غاړه یې جګه ونیوله. چاپ انداز ستړي مشي را کړل او په مسکایې راته وویل :

وطنداره نسوار لري ؟

ـ هو شته دي .

بلاغوند مې له جیبه راویوست او سر مې پرانیسا، ده لاس راوغځاوه او په زخمي ګوتویې زما نظر وزغلېده :

اوه ! دا ګوتې دې ولي زخمي شوېدي ؟

دی وروغوندې مسکی شو، نسوارېې واچول او بیایې سور دستمال د سر نه خلاص که او ویې ویل :

دغه سر مې ویني ؛ درې ځایه مات شویدي ؛ دا بز کسي نه ده؛ آدم کسي ده. پخوا به د بز کشۍ میدان د مردانو و، خو اوس د نامردانو دی.

ـ اوس څنګه دا میدان د نامردانو دی ؟

دی را په ډډه شو، کیناست او د یوه ساړه او سیلي نه وروسته یې وویل :

دا بز کشي د یوه غټ ارباب د واده لپاره جوړه شویدي او ستر انعامونه لري . دړېرو سېمو بز کشان دلته راغونډ شویدي . زه په رستاق کې په دې بز کشط خبر شوم . شوقي سړی وم او ډېرې میدانونه مې وهلې وو ، نو سمدستي دا آس په تپوس پسې ووتم او دغه آس مې له یوه بای نه تر ډېرو زیارو وروسته په اوو زرو افغانیو باړه که، په اوو زرو افغانیو یوازې د همدې لوبې لپاره . خرڅ او سامنه یې هم په ما ده. که سټ او یا ژوبل شي نو تاوان به یې هم زه ګالم، داسې تاوان چې که راباندې واوښت زما نور او د قلبې دوه غوایي پکې تللي بوله. خو که چېرې په دې لوبه کې بری لاس ته راغلی وای ن یی به د باړی پیسې راپرې ایښې وای او دې وتلي آس به د یومن سرو زرو بیه پیدا کړې وه .

بز کش یوه لنډه دمه ونیوله او بیایې وویل :

ما دخپلو بچیانو د خوراک وړه او جوار خرڅ کړي او ددې آس په باړه کې مې

ور کړیدي . .

ده نورې خبرې هم کولې، خو ما وارترې واخیست او ومې پوښتنه :

نو ولې له قورې[8] نه راووتې ؟

قوره ! داخو قوره نده، کوره ده کنه، پخوا به آسونو د منډو دربې د زړورو او میړنیو زلمیانو د شجاعت او مهارت آوازې خیرولې، خو آسونو د منډو لیکې د بایانو او اربابانو د سهوت لارې سېخوي . دې ستمنو سیطانانو او دې په پیسو خرڅ شویو چاپ اندازانو دا پاکه لوبه خیر نه کړیده. بایانو دول چاپ اندازان مزدوران کړي او ګرو نړیدي. پیسو نامتو چاپ اندازان او پیاوړي کسان ګرد یره د خیټورو بایانو د غرور د تسکین لپاره یره یو ځای کړیدي. په داسې قورو کې هغه څوک ورغومی ایستلای شي، چې د اربابانو د نظرباو او ګرو شوی چاپ انداز ورسپه ملګری دي. په داسې حال کې زما غوندې د څانګړو او غریبو سپرو بخت او قوت دوړه څه نه شي کولی، بیا په تېره چې د بای له آس او چاپ انداز سره د ملا چارې او تاویزونه او د خان ملا دمونه هم یو ځای شي.

زه له سهاره تر غرمې پورې په خوره کې وم، څلور ځله مې ورغومې واخیست او یو ځل مې په چلبر[9] پورې هم وتاړه، خو د شلاقو بارانونه به راباندې اورېدا او تر څو به زین ته سمبډم د بایانو آسونه او پیرودل شوي چاپ اندازان به مې په اوږو راوختل . دولو د خپلو بایانو له ډلو سره مرسته کوله او زه یوازې وم .

په کلي کې دولې کرونډې او بازارونو کې درست د کانونه د بایانو وو . دا یوه بز کشي پاتې وه، اوس دا هم د بایانو شوه.

دا احمق چاپ اندازان مې څو ځله یوه کړل چې دا ترتیب ستاسې په ګټه نه دی، راځئ چې سره یو شو او د لوبې مخه و ګرزوو، خو نه مې مني. بایانو داسې کوډې پې کړیدي چې ته به وایې ایمان یې ورسره ګرو دی.

ازبک زلمی وخندل او حپلې خبرې یې داسې اوږدې کړې :

---

۸ ـ قوره = د بز کشۍ میدان

۹ ـ چلبر = وړبن وانبی چې په زین پورې تړلی وی او یو څه ورپورې تړل کېږي .

تا به چېرې داسې احمقان لیدلي وي چې د یوه و چ شاباسي په خاطر د نورو لپاره د خپل سر په بیه شهرت او افتخار وګټي !

زموږ د خوشالتیا لاره ټولې دروازې بندې شویدي، زه به بیا ورغومې ته هیڅکله لاس ورنه وړم ، تر څو داغولیدلي چاپ انداز ان له دې غلامی نه راخلاص نشي.

له هماغه وخته تر اوسه پورې ډېر کلونه تېر شویدي، خو لوبه د بایانو په لاس کې ده او د دوی د ګټو لپاره کار کوي .

دهانه غوری ۱۳۴۴

# فاحشه

د نور خاوند د اوږده دهلیز په پای کې کوچنۍ دروازه پرانیستله او ماته یې په لاس د ننوتو اشاره وکړه. یکلې کوچنۍ کوټې چې سرې نرۍ پردې یې په روښانه کړ کیو راپروتې وې ماته خپله غېږ پرانیستله. برسر د خونې په الماری کې څو کوچنۍ مجسمې، بلوري لوښي، یوه زنګ لرونکې ګړۍ او څوداني پلاستیکي نانکې ایښې وې. د الماری د پاسه په غوړبن رنګ بوه رسم شوی تابلو راځوړند وه.

زه سیخ بر سر تېر شوم او په تابلو کې د ویده شوی ماشوم په ننداره بوخت شوم، ببر یری هلک شلیدلی پتلون یې په پښو کې و، د ښودیو ې دلۍ د پاسه خوب وړی و. سرته یې نېږدې یوه غوا که پرته وه او په لوڅو پښو باندې یې د غټو مریو په څېر زخې له ورایه ښکارېدلې. ماته د یلهایانو په کور کې دا تصویر داسې ښکارېده لکه د هندو له کوره چې قرآن راووزي. ښایي دوی د خپلو عیاسیو د زغملو لپاره مجبوریت لري کله کله د تنوع په غرض د ژوند ځپلو د ترخو خاطاتو ځینې تصویرونه راځوړند کاندي او هغو ته د غرور په نظر وګوري او ځینې وخت لا د ځان ښوونې په توګه د خپلو میلمنو د مخه د هنردوستۍ او هنر پیژندنې لافې ووهي، دا ځکه چې ځان هنګمند شودل پخپله د دې مغرور احیواناتو یو لفظي فیشن دی. لکه څنګه چې دوی د مګچو او ترشۍ په استعمالولو خپله اشتها او ګیله خوشلوي همداراز ځینې وختونه دوی د وږو او بربندو خلمو په تصویرونو، قصو او له هغوی سره په لفظي همدردۍ غواړي د خپلو اوړدو عیاشیو زغم پیدا کاندي او خپل ګناه کار وجدان ته په دې توګه د للو سندرې وبولي.

دوی فکر کوي چې همدا تندي او ترشي به دوی له هغو بدهضمیو څخه خلاص کاندي، کومې چې د دوی د چړچو یوه طبیعی نتیجه ده.

ما لا د رنګینې تابلو په باب د فکر اوږده پړاوونه وهل چې د کوټې په ښکته سر کې د ښیښو آواز زما پام واړاوه. د سالون په ښکته سر کې د ګردې میز شاته یوه ښایسته ښځه ناسته وه. زما راتګ ددې په وزه کې لکه چې هیڅ اغېزه نه وه کړې. ما سلام ورواچاوه،

مگر هغې اعتنا ونکړه او یوازې د سر په ډېره سپکه اشاره یې د سلام ځواب راکړ. دوه درې گامه ورنېږدې شوم او مخامخ ورته کښېنستم ، د ستر گو په کړیو کې یې د درندې بېخوبۍ آثار ښکارېدل، د سپین کمیس په گریوان یې تور او اوږده ویښتان خواره واره پراته وو، په څېره کې یې د ژورو غمونو کرښې ځغلیدلې وې او د مخ ه کاسه کې یی لکه گلاب چې د اور لمبو ته نږدې شي د مثیبت او رنځ سره ټاپې پیدا شوی وو. په ذهن کې مې د پوښناو توفان سر رااوچت کړ، پخپل کاذب غرور باندې مې پښه کېښوده او ومې پوښتله :

خور کۍ ته څوک یې ؟

ـ زه . . . زه ؟

یو خوږ مسکی یې په شونډو وځغلیده، لاس یې گیلاس ته سووړ او د اور پیمانه یې په سر واړوله ـ زه ستاسو د چړچو یوه نانز که یم. زه یوه بدنامه ، دربدره او بیکسه ښځه یم .

په ستر گو کې یې او ښکې ډنډ شوې ، ورویې په غومبورو رابهېدې او له مخ سره یې د تورو ځڼو په تارونو کې ور کې شوې. د چوکۍ نه را کږه شوه او خپل گیلاس یې ډک کړ. له یوې لنډې چوپیاو نه وروسته لکه لیونۍ پخپله چوکۍ کې راتاو شوه او په ژړن آوازیې را ته وویل:

زه فاحسه یم، زه شرف او ناموس نلرم او د پیسو لپاره هر چېرې ځم او هر څه کوم .

ـ خدایه څومره ستړې او بې خوبه یم .

نورې خبرې ونکړې ، سمونی یې وپړسېده او د او ښکو سیلاب یې په مخ اروان شو . داوار پیمانه یې په سر واړوله او د غمځپلو او ښکو څاڅکې یې په گیلاس کې وڅڅېدل ، گواکې د مصیبت او غم څاڅکې د مستۍ از بېخودۍ په زهرو ورگډ شول او د یوه محکوم انسان د لیونتوب او رسوایۍ تصویر یې بشپړ که .

یوه شېبه وروسته یې بیا شوډې ورپېدې او په ناست آواچیې ززیل :

بې خودۍ او نیشې له واکه ایستلې یم. ماته اوس کوم داسې ستر او ناموس نه دی پاتې چې زه د هغه د خوندي کولو خیال وساتم. کومه ښځه چې یو ځل د هغو خرو پادې ته ورننوته چې طلایې او سارونه او ځنځیرونه ورلویدلي دي ، بیا به نو څه د خپل ننگـ او شرف خیال ساتي !

... هغه څه چې ما یې خیال ساتلی و ای اوس زما له لاسه وتلی شی . زه شرف نلرم، فاحشه یم، یوه بدنامه ښځه یم او تورې کټوې ته ورته یم چې د هر چا سپینه لمن راسره و نښلي خیرې اخلي او تو ګېږي .

اوه ؛ څومره بې خوبه یم ! څلور شپې کېږي چې ما خوب نه دی کړی او لګیا یم کړۍ شپه د وطن د زامنو د خوشالولو لپاره له ماښامه تر سباوون پورې ناڅم، سندرې بولم او ترخې اوبه ویشم ...

نرۍ ګوتې یې په تورو او اوږدو څڼو کې ننه ایستی او بیایې په خپل مخ باندې غوټه شوې او ښکې را پاکې کړې. له یوې ککسۍ نه راپاڅېده او په بلې کرسۍ کې ولویده. په ښکلو ستر ګو کې یې د غمونو کرښې وځغلېدې او په ژړه غونې آوازیې له مانه پوښتنه و کړه: ته اولاد لري ؟

ـ هو !

خپل اولادونه درباندې ګران دي ؟

ـ دا خو طبیعي خبره ده او زه د ځان وظیفه بولم چې له هغوی سره مینه و کړم .

د اوښکو سیلاب یې په مخ را مات شو ، په زوره زوره یې وژړل او په سلګو کې یې دا خبرې له خولې راووتې :

اوه خدایه ! زما بدمرغې او بې وزلې یوسف به څومره راپسې ژړلي وي ...

خدایه ! که ناروغ شویوی ... زه به څه خاورې په سر بادوم . ما هغه په خوب کې پری یښی و ... دا څو ورځې کېږي چې بسا نه یم پې خبره.

وروسته له اوږدې ژړایې ما ته مخ راواړاوه :

مګر ته د اولاد په مینه نه پوخېږې ، ته پلاریې ، مور نه یې ؛ تا هیڅکله خپل ماشوم ته تی نه دی ور کړی او هغه هیڅکله ستا په سینه نه دی ویده شوی ،تا دهغه د خولو بوی نه دی احساس کړی ؛ ستا او ښکې د هغه له او ښکو سره نه دي ګډ شوي او تا پخپله څنګل باندې د هغه د خوب زېـهوړوونـکې خـر کـی نـه دی اوریـدلـی ؛ یـوازې مـیـنـدې دا اوري او ددې سوځوونکې لذت احساس کولای شي. یوازې میندې د خپلو ماشومانو په غومبرو باندې د رڼو او ښکو د ضطراتو په مرغلرو کې خپله آخرینظ او پورتنۍ مینه لیدلای شي. کله چې یو

ماشوم مرور شي، مخ ديوال ته واړوي او همالته په ناستو ويده شي، ته څه پوهېږي چې دا خال ميندو په زړه کې څه غلي شوي توفانونه راويښوي ! ته مور اه يې او دې دنيا ته لار نه لري .

اوخ ؛ خدايه ؛ زما يوسف به څومره راپسې ژړلي وي . که ناجوره شوي وي زه به څه کوم ؟

کله چې راويښ شوی او زه ترې ورکه يم د همسايه ښځې به تسل کړی وي ؟
خدايه ؛ دا ته څنگه دومره بدبختۍ گوري او زغمي يې ، دا زه دې د څه لپاره هستولم ؟ تا ته زما په څورولو کې څه گټه ده ؟ مرگ دې راباندې وتاړه ؛ ښکلې دې کړم ، د خرو او ليوانو د خوشالولو چه دې راوښود او بيا دې د خپلو وحشي نازولو ته وسپارلم چې ستا د راکړي حمال انتقام راڅخه واخلي ؛

اوه ؛ احمقه احمده ! اوس خو خپل سر راپورته کړه او وگوره چې ستا وطني ورونه ستا له بې بې سره څه کوي !

څومره سخت ژوند مې درسره تېر که ، په خطا لار کې مړ شوي !
ستا د وطن پرستۍ په مکافاتو کې ستا معشوقه ستا د وطني ليوانو خرابات ته راوتلې ده او ستا ماشوم يوسف د همسايگانو رحم او شفقت ته پاتې دی .
ستا بې بې راوتلې ده او ستا د وطن او غيرتي خلکو د ناموس او شرافت امتحان اخلي !
تا هر پړانگ او ليوه ته د وطن د زوی په سترگه وکتل او تر پايه په دې پوه نه شوې چې لړم هر چېرې لړم دی .

تا د وطن گلونه او اغزي سره بېل نکړل او د وطن د ورۍ او ليوه په توپير ونه پوهېدې، اوس به هيڅکله ستا د هغو غلطيو پتې ونشي ، کوم چې موږ يې برباد کړي او تباه کړي يو ؛

مگر هغه کونډې چې د ويتنام د آزادۍ په جگړو کې يې خپل ملگري له لاسه ورکړي دي، همداسې رسوا شوي او بربنډې شويدي ؟

مگر هغه ماشومان چې په کوبا کې له پلرونو پاتې شويدي لکه همدا زما يوسف د فاحشو په ناوليو لمنو کې لويېږي ؟

نه ، نه ، هيڅکله ؛ هيڅکله د زيارايستونکو د ټولنې کوندې او يتيمان د خانانو او سوداګرو د ټولنې د کوګډاو يتيمانو په څير يوازې او بې کسه نه دي .

بغلان ـ ۱۳۴۳

# د جومات مېرې

د ۱۳۳۵ کال د ژمي یوه سړه ورځ وه ، واورې ورېدلې او سخت باد روان و ، د باد په شپېو کې د واورو شپېر کې له درڅې [۱۰] څخه دننه کوټې تهورېدل او زموږ د تناره چارچاپېر غولی یې لندااوه .

موږ په یوه شنه خاورینه کاسه کې توت او د غنمو نیني ګډ کړي وو او ګرد سره پرې بوخت وو . زما کشرۍ خور مروره شوې وه او د کوټې دوره خواته ناسته وه ، موږ ته یې شا کړې وه، خو کله کله به یې مخ راوااړاوه او را به ویې کتل، خو چې موږ به ورته کتل، نو دې به مخ بېرته واړاوه او ځان به یې مرور وښود . معلومېده چې زموږ د ست انتظار لري او یوائې یوې کوچنۍ بلنې ته ګوري خو چې موږ به بلنه ورکړه دې به ځان ورټول کړ او سر به یې له دیوال سګه ونښلاوه .

میرې مې د پخوانیو کوچیانو د بر کتونو او ښو زمانو قصې کولې . کله به د ګړندي باد د شپېو دروازه په ډېر زور وازه کړه او د واورو ځپه به یې په کوټه را ننه ایستله او زموږ د کوچنۍ او تورې کوټې چت به یې داسې ورېږداوه چې زمږ به ګومان کاوه اوس به کوټه راباندې راولوېږي .

لږې او وریځې په ځمکه پلنې شوې وې او وخت نه معلومېده. څو ځلې مې میرې راته وویل چې مازیګر دی ، جومات ته لار شه، مګر ما ورته ویل لا وخت شته دی ـ او ځنډ مې کاوه .

موږ لا د مهربانې مېرې قصو نه غوږ ایښی و چې پلار مې له باندې نه راناری کړې :

هلکه د لمانځه وخت دی .

له ځایه پاڅېدم او چټک مې خپل چکمن واغوست او راووتم . پلار مې د سرای له

---

۱۰ ـ درڅه : دریڅه روشاني انداز، د کوټې په چت کې وړو کې ګرد سوری چې د رڼا د ننوتلو او لوګی د وتلو لپاره وی

دروازې سره راته ولاړ و . پوستين يې ټينګ پر ځان راتاو کړی و او په شنه اوږده لکړه يې تکيه وهلې وه . چې زه يې ولېدم ، نو وخوځېد او د سرای له دروازې څخه ووت . زه ورپسې شوم از زمړ تور سپی هم له کدانې را ودانګل او په نري منډه کې په ما پسې راوخوزيد . لار مې د زيات عمر له کبله زوړ شوی و . او کلوشې يې هم زړې وې او تلې يې زيات ښوی شوي وو . څو ځايه غريبکوټی وښوييد او په ځمکه واويد ، خو ثواب او د خدای په لاره کې ده ته ددې تکليف زغمل سخت کار نه و ، بلکې ده به خوند ترې اخيست او له هرې حادثې سره به يې وويل : «خدايه ته راضی شې ! »

خو زما او ده په جهان بينۍ کې يو څه فرق و ؛ ما ته با دده له هرلوېدو سره دده د اوږده عمر منډې او ستړې را په ياد شوې او دا مې سنجولای سو چې ده د ځوانۍ په شپو کې څومره سخت وظايف اجراء کړي او څنګه د خپلې معصومې عقېدې په سيوريکې دده د عمر طلايي ورځې د نورو تر هوسونو او جاه طلبيو قربان شوي دي او دته له خپلو هڅو او قربانيو نه يوازې همدا يوه کلمه « شکر » او اوږد احتياج ورپاتې شوی دی . سخته غصه راغله او د تور انتقام لوګي مې ماغزه وخوځول ، زړه مې په ټوپو شو او ګامونه مې بې وانه ارت او چټ شول ـ ګوره چې څه راوشول او پښه مې لاړه ، په ځمکه ولګېدم او کينه ځنګل مې ژوبله شوه ، د شاله خوا مې د نجونو يوه ټولي چې په اوبو پسې ته راباندې وخندل ـ سخت خړ شوم . په بېړه پاځېدم ، خو بيا ولوېدم او دا وار له منډه ووتم او ځان مې په ځغاستو د جومات بيالې ته ورساوه . زه چې له اودسه خلاصېدم ، ملا صاحب د مازيلګر آزان وکړ او په ما يې هم غږ وکړ چې راوچټ شه جمه تېرېږي . بېړه مې وکړه او ځان مې جمې ته ورساوه ، په ملاصاحب پسې مې نيت وتاړه ـ موږ لا دوه رکاته نه وو خلاص کړی چې د جومات په دروازه کې خرپې شو او ورپسې د جمعه خان اکاغږ پورته شو :

سور ګله ! ته تر سر شه ، علم ګل دې داسې راوګرځي . هلئ هلئ برکت پوسئ بر سر ته يې تېر کړئ .

له دې خبرو سره جوخت د ځګيروي آواز پورته شو . د ټولو لمونځ ګذارانو حضور خراب شوی و ، ځينو بزګرانو دلمانځه په وروستي صف کې اوږې راکږی کړې او د سترګو له کونجونو نه يې کسنهې خواته وکتل . زه هم ګناه کار شوم او دا کار مې وکړ ،

خو څه مې و نشو ليدای او يوازې دومره پوه شوم چې هلکانو يو شی نيولی او د جومات برې خواته يې راکاږي. ګوره دا به څه وی ؟ بيا څه پېښه شوې ده ؟ ښايي د جلب يا د بېګار سپايان به راغلي وي او ملک کاکا به ټغرونه او توشکې ورته راوړې وي ، نو دا ځيګروي ولې ؟ ښايې علاقه دار راغلی وي !

پاتې لمونځ په همداسې وسوسو کې په ما باندې ډېر اوږد شو، خو آخر پای ته ورسېد. په دعا باندې چندانې خلک پوه نه شول او چې دعا خلاصه شوه، ن ټول کليوال راپورته شول او ت□ رنځور مساپر راچاپير شول.

پيرواکا وويل: داغريبګوټې تېره شپه دلويې لارې سره دکلي سموار ته رسېدلی و او هماغلته پاتې و. خوارکې سخت رنځور دی، د سماوار خاوندزه يې خبر کړم او ما هلکان له ځان سره بوتلل او دلته مې راووړ.

بز ګرانو په ډېر غور د پيرولالا خبروته غوږ ابښی و او په ځير ځيرېې رنځور پرديس ته کتل.

هر چا به د پرديس په باره کې يو څه ويل او خپله تبصره به يې کوله ـ يوازې زما پلار چوپ و ، خو په ستر ګو کې يې دوه رڼې او ښکې ځلېدلې .

انځر وويل: خوار سپين ږيری دی، ښايي کوم زوی به يې چيرې نوکر وي او دی به د هغه پوښتنې ته ځي .

رنګين چې د کلي يو نومولی زلمی و ويې ويل :

ماته ښکاري کې دا سږژ د غريبۍ لپاره خان آباد ته روان دی او يوازې ژمی هلته تېروي.

يوه سپين ږيرې سړی وويل: نه داسې نه دهؤ له کاليو يې داسې ښکاري چې خرکار دی او د کتغن په خرو پسې راغلی او دابه يې هم انګيرلې وي چې له دې خوا به مالګه يې بار کړي. هرچا هر څه ويل، خو ده پخپله هيڅ نه ويل ـ له واکه تللی و او په ځان نه پوهېده ـ شونډويې تور خروکې نيولي وو او ستر.ې يې پټې وې، پرله پسې خريده او کله به يې په ځګيروي کې ځو بې مفهومه کلمې له خولې راووتې، خو معنايې چا ته نه ورتله او مزږ نه پې پوهيدو، د غاړې رګونه يې جګ جګ الوتل او له بدنه يې دبې تاو جګيده او له خيرنو

کاليو ځخه يې سوړ وږم پورته کېده .

يوه زړه او پيوندې خورجينه يې سرته پرته وه، يو شکېدلی کوڅويې په ځان و او په يوه تور وړين پړي يې کاک په ملا باندې تړلی و ـ ستر ګې سې د سر په کاسه کې ښکته تللې وې او د سر خولۍ يې د خيرو له کبله شورۍ شوې وه او د خمتايو زوړ لنکوټې يې پر سينه باندې ول ول راپروت و .

خدايدوست اکا د جومات ملا ته مخ راواړاوه ويې ويل :

د پرديس حال ښه نه دی، ښايې پور پرې کړي، بايد دده کالي او پيسې خوندي شي .

ملا او د کلي سپين ږيرو ته د خدايدوست اکا خبره پخه ښکاره شوه، د پرديس خورجينه يې و پلټله، بيا يې د هغه له ملا نه تور وړين پړی خلاص کړ، چکمن يې ځينې ويوست، د زړې بر کې د واسکټ استريې په غور و کوت، بيا يې د پرديس د کميس تنۍ پرانېستې، کاته يې چې يوه کڅوړه يې د تاويز په شان تر کميس د لاندې په غاړه کې پرته ده. هغه يې ترې خلاصه او د ده کاليو سره کېښوده . د کڅوړې په مينځ کې يو د لسو روپيو کاغذ او يو څه تورې پيسې چې ګرد سره دوه نيمې روپۍ کېدې پرتې وې. د خورجين په يوه پله کې يې د وچې ډوډۍ څو ټوټې، يو څه وچ توت او په يوه غوټه کې لږ شين چای، يو د نسوارو کدو، يو څه زړې ټوټې، لږ خام تار او يوه ستن پيدا شول.

په بله پله کې د ماشومانو يو و شسکټ او د خوږو يوه غوټه پرته وه او همدا وه د پرديس ټوله هستي .

د جومات ملا مخ خلکو ته راواړاوه او ويې ويل :

تاسې شاهدان او سئ چې دا سپين ږيری نور څه نلري او همدا شيان دده ټوله هستي ده .

بز ګرانو د ملا خبره تائيد کړه او دا شهادت يې و مانه.

د خدای په کور کې د يوه بدمرغي بنده په باره کې مرکه روانه وه خانګل وويل :

که چېرې مړ شي څه به کوو ؟

دخانګل پوښتنې ته هيڅا ځواب ورنکړ، بيا د پخپله وويل :

که چېرې د شپې مړ شو، څو تکړه هلکان دې مړی واخلي او د کوز کاق په جومات

کې دې واچوي او بايد دا راز پټ وساتل شي او د کلي خبره د باندې ونه وزي. ځکه که مړی ښکاره کړو او حکومت خبر شي يا د مړی خپل خپلوان راشي او دعووی وکړي، خدای زده چې څه چارې به راوشي .

بل لمونځ گذار وويل :

هو ! دا کوټوالان موږ پېژنو، له دې خورجينې به خامخا د سرو زرو صندوقچه او له دې دولس نيم روپيو نه به ډېر څه جوړ کاگدي، قتل او پور خو يې لا په ځای پرېږده ! .

خدايدوست اکا دلته بيا سر راپورته کړ، غاړې يې تازه کړې او ويې ويل :

ماته د خدای قهر د حاکم تر قهره سخت ښکاريږي ـ که دا پرديس او هردم شهيد بنيآدم له دې ځايه لژې کړو او بل چېرې يې واچوو خدای به راته په قهر شي ؛ تر ټولو غوره لاره داده چې ملک خبر کړو او دا سړی چې لاتراوسه ژوندی دی وروښيو او مال يې د هغه تر نظر تېر کړو .

خانگل د خداي دوست خبره پريکړه او په تمسخر يې وويل :

خير نو د ملک غوا به انگه شي .

دا خبره سپين ږيرو نه د ځوانانو خولې ته ولويده او سره پې تاوده شول. خدازده څه پېښه شوه چې د خانگل او خدای دوست اکا زامن سره ولاړ شول او په جنگـ او جگړه يې لاس پورې کړ، د خدای په کور کې د فتنې اور ولگېده او هلته به چې مقدس آيات لوستل کېدل ناوړو او شرمناک الفاظ د لمونځ گذارانو له خولې راووتل، په پانو ښځو باندې تومتونه وويل شول او په معصومو زلميانو گناوې وتړل شوې.

زه له جوماته لا مانښام خورته راغلی وم، يوه شېبه مې د کور له باموونو نه واوره وتوږله او بيا راغلم، له خويندو سره د ماخوستن په ډوډۍ کيناستم. ادې مې د لادي شوروا پخه کړی وه ـ ډېرا يې مزې زه او دا ځکه چې سره جواری ډېر بې خونده او بدمزه وي. موږ لا ديترخانه نه وو پورته شوې چې پلار مې د ماخستن له لمانځه راغی. ټول يې مخې ته ودريدو. دې بر سر تېر شو او څنگه چې کيناست ماته وويل : هغه رنځور پرديس په جومات کې يوازې پاتې شو، هلکان د ماخستنی لپاره کورونو ته لاړل . ته ژر خپله ډوډۍ وخوره او ورشه چې هغه غريبگوټی چېيرې بې کلمي او توبې مړ نه شي !

ډوډۍ مې خلاصه کړه او سمدستي له کوګه ګاووتم. واوره تر زنګانه او ښتې وه. وریځې په آسمان کې خورې شوې وې او ځای ځای یو نیم ستوری لکه د یتیم او ښکې د آسمان د مخ په شنو چاودو کې ځلیده. ګړندی باد روان و او د کوځې شاوخوا د ونو په لښتو کې یې د غم سازونه غږول.

د کلي سپي غلي وو او د لارې په اوږدو کې هیڅ حرکت او ژوند نه محسوسېده. جومات ښاته نژدې شوی وم چې سخته ویره پیدا شوه. ګامونه مې اوچت کړل او منډه مې پسې واخیسته. ناڅاپې مې پام شو، د منډو په مینځ کې مخامخ لیوه راته ولاړ دی، ژبون مې ووهل شو او لرزه مې په صورت راغله، غوښته مې چیغه وکړم، خو د جومات خادم پیرک راباندې ناري کړي:

څوک یې ولې ودریدې؟

ما وویل: زه یم، خدای دې خوار که! نژدې دی زړه راکې چوولی و. ده وخندل، رانژدې شو او په غیر عادې توګه یې خپل ځیره او پرېږ لاسونه د پوښتنې لپاره راوغځول او سترې مشې راسره وکړل، د سترګو سپین یې د تور مخ یه کاسه کې ولړېښېدل او بیایې په سهم جن آواز راته وویل:

راغلم، ګومان مې کاوه چې هغه رنځور به په جومات کې یوازې وي. ما وویل:

هو خیر یوسي! ته خو یو زړه سواندی او ښه سړی یې، مګر په زړه کې پوهیدم چې پیرک د مساپر د پاره نه دی راغی، بلکې د خورجین او کوڅو له پاره راغلی دی او دا ځکه چې ده څو، څو واره له جومات نه د مساپره پټې او ځنې داسې نور معمولي کالي غلا کړي دي. نورې خبرې مې سره ونکړې او دواړه د جومات دروازې ته رانژدې شوو، ورمې خلاص کړ او ننوتم، د جومات فضا د تیلي ډیوې لوګي ډکه کړې وه او بد بوی پکې خور شوی و. مساپر د شولو د وښو دپاسه پروت و او هماغسې خربده، د سترګو توریې تښتیدلی وو، د ډیوې زیړه رڼایې په مخ باندې رپیدله او د خولو کوچنی دانې یې په مخ باندې ځلېدلې.

د مساپر د ژوند تاریخ د خیال په ورڅخو کینولم او ورو ورویې د خوب څپوته وسپارلم- تللی وم او داسې تللی وم چې بیا د کلي د څړه ځوانانو په راتګ او پریوتو هم نه وم

خبر شوی .

يو پار شپه به پاتې وه چې له خوبه راويښ شوم، ډېره ډېره تته لګېده ځمکه ګمان شاو خوا په درانه خوب ويده وو، د پرديس خوله وازه پاتې شوې وه، د ستر ګو توريې تښتيدلی او د سينې خر کی يې غلي شوي و. د باد آواز نه اوريدل کېده او طبعيت د درانده سکوت برستن په سر راښکودې وه، په جومات کې هر څه پخپل ځای وو، يوازې د مړه مساپر کوڅو چاوړی و.

هغه شپه تېره شوه او په شپې پسې مياشتې او کلونه تېر شول، ډېر خلک په دې لار راغلل او لاړل، مګر هيچا د هغه مساپر پو ښتنه بيا ونکړه او هسڅوک پوه نه شول چې دی څوک و او چيرې ته ؟

۱۳۴۳ کال

# د کارخانې جشن

د ښار په خلنوکۍ د خار خانې د پرانيستلو د جشن خبرې خورې وې .

هر چا به هر څه ويل او د جشن په باره کې به يې خپل اوريدلې نوروته اورول. ماشومانو به په ښونځيو کې، کارگرانو په فابريکو کې او ښځو به په کورونو کې د جشن په باره کې مرکې کولې .

علي مراد حمال بيا تر ټولو د جشن په مرکو مين و، څنگه به چې د جشن نوم واخيستل شو دده کوچنۍ سترگې به د پلن مخ په کاسه کې راڅرخيدې، د پيتې پورې به يې سپوږمې ورپيدې، پخپله کوسه ږيره به يې لاس راښکود او په مغرورانه انداز به يې وويل :

« داجشن زمگړ دی او دا کارخانه ما درولې ده .»

ددې وينا سره سم به علي مراد د خپلو لاسونو ورغومې چې د اوښ د تلي په شان د کار له زوره کلک شوي او ښوی شوي وو انډيوالانوته وښودل او دا حرکت به يې په يوه فاتحانه خندا پای ته ورساوه .

کله کله به يې لا خپلې زړې ځولې ته چې لکه د غنې جاله په تارونو کې رابنده وه اشاره وکړه او وبه يې ويل :

« ما همدا چکمن د همدې ارخانې په جزړولو کې زوړ کړيدی »

ځينې وخت به يې د خبرو په ترڅ کې ستونې وپرسېدې او د کوچنيو سترگو په تورو مريو کې بې يې د اوښکو کړۍ را پيدا شوې . داوخت به علي مراد ته د خپل زلمي زوی قنبر مرگ ورپه ياد دوی و . قنبر په همدې کارخانه کې تر واگون لاندې شو . علي مراد لا د اوښتي واگون تر درانه بار لاندې د قنبر زگيروي اورېدل او هغه ويني يې لا ليدلې چې د قنبر له خولې نه دده د خمتا په خړ واسکټ را بهېدلې .

ـ اوه ! څومره ښه زوی مې و ! څومره به يې زما خاطر ساته ، يوه ورځ چې دټ خپلې مزدورۍ پنځه روپې يې خرڅې کړې وې څومره ښکنځل مې ورته وکړل مگر دې بنده له حيا نه حتی خپل سر راپورته نکړ . ده زما تر مخ يوه ورځ له خپلې ښځې سره زړورې خبرې ونکړې او زما له شرمه يې يو ځل خپل ماشوم ته ناز ورنکړ . اوه ! زه څومره غريب او بې

کسه يم، زما قسمت څومره خوار دی او دا زه څومره بدمرغ او نامطلوب انسان يم . آخر زه به دا پاتې عمر څنگه تېرومه او د خپلې بدمرغۍ داستانونه به چا ته وايم. دا کوچنی ماشوم به څوک لويوي او دا ځوانه نږور به په څه هيله صبرومه ؟ قنبره، قنبره زويه ! د خدای د پاره زه ډوبېږم .

دا خبرې به د علی مراد پې خاطر کې وگرزېدې او ورپسې به دا وښکو سيلاب دده د نری ږيرې له سپينو ويښتانو ته دده په شکېدلي گريوان راخور شو، په زوره زوره به يې وژړل

او زړه به يې تش کړ، خو دده اوښکې به لکه د ثور باران کم دوامه وې او ژر به دده په زړه کې د ناميندۍ د تورو وريځو له شانه د هيلو زرين لمر راوخوت، مسکی به شو او دا ساده جمله به يې له خولې راووته :

«که خدای کول په نږدې وخت کې به کارخانه چالانه شي.»

ده به په ډېر سادگۍ کې نورو مزدورانو ته دا زقری ورکاوه:

«که خدای کول زموږ او ستايې ژوند به له دې کارخانې سره سم شي .»

ده دا مطلب د کارخانې د ښست ايښودلو په وخت له يو ستر مامور څخه اورېدلی و او کلک باوريې پې لاره. ده به داهمخ ويل چې دا کارخانه په حقيقت کې زموږ ده او گټه به يې پخپله موږ ته راورسېږي.

همدا هيله وه چې په علي مراد يې سره له ټولو بدمرغيو د خپل زلمي زوی مرگ زغملی و .

د يکشنبې ورځ راورسېده، د جشا ورځ او د مزدورانو د نيکمرغۍ ورځ !

علي مراد د خپل ښايسته لمسي سترگې په رنجو کړي، خپله زنگـوهلې زړه بياتي يې راواخيسته او د ښايسته ماشوم د سر ويښتان يې د وتې (١١) په ځيژ گرد و سکښتل.

د قنبر د واده د پسې گل سيب دسمال يې راويوست او په سريې وروتاړه، بيايې په غيږ کې واخيست او د کارخانې په لور رهي شو.

---

١١ ـ وتې = ځوندی ، پوپک

ـ خدايه ! لکه چې راباندې ناوخته شوې ده، ګوره چې نقل يې لا نه وي ويشلي.

او چت او چت ته، خو د ځوانۍ تګ يې نه وپاتې، هلک پې درونند شوی و او سا يې سوله. ماشوم په ټوله لارکې خندل او له خوشالۍ نه يې د خپل نيکه په غېږ کې ټوپونه وهل.

ځای تهخ رانږدې شول، د کارخانې د ننوتلو په لار دوه کتاره وسله وال ژاندارم او پوليس ولاړ وو. هالته لرې د کارخانې په مينځ کې د جشن سره او سنه بيرغونه رپېدل. د سړک په سينه باګدې د ګړنيو موټرونو پرله پسې بهير رارروان و. د دروازې په خوله کې نابلد وګړي دريدلي وو او د ميلمنو ټکټونه يې کتل.

ـ « خدايه دا به څوک وي ؟» علي مراد دا سړي پخوا هيڅکله دلته نه و ليدلي. د هغو مزدورانو له جملې نه هيڅوک نه ښکاريدل چې دا کارختنه يې جوړه کړې وه. نجاران، خټګران، مستريان، حمالان، حتی ډريوران او کرين کاران هم نه ليدل مېدل. د فابريکې د دروازې له خولې نه دانګړ يوه برخه څرګنده ښکارېدله هلته ټول د خوليو او دريشيو خاوندان راټول شوي وو، د جميعت د خندي او شور آواز چې د لوړو لوډيسپيکرونو له آواز سره يو ځای شوی و تر عمومي سړک پورې رارسېده، علي مراد دروازې ته نږدې شو، خو د دروازې ساتونکو د هغه مخه ونيوله، ده نانمونکې زارۍ شروع کړې او د دروازې نظم ته يې صدمه ورسوله، د جمتي خلکو د مراسمو نزاکت د يوه بې حيشته او بې ارزښته سړي له خوا خراب شو. د دروازې ساتونکو حوصله يې تنګه کړه، سپايانوته اشاره وشوه، يو پريړ توربخن پوليس رامنډه کړه او علي مراد يې داسې څپېړه ووهه چې لنګوټی يې يو ګز له سره لرې ګوزار شو، بل پوليس د شاله خوا ووهه او علي مراد خوارکی پړ مخې ولويده. ماشوم لمسی يې له غيږې په ځمکه ګوزار شو او سخته چيغه يې له خولې راووته.

د بېدفاع او نااميند مزدور ژبه ګونګه شوه او سترګې يې د اوښکو پردو پټې کړې.

هالته لرې د موټرو د پارک ساته شور ځوږ پورته شو، څو تنه مزدوران په منډو د سړک مخې ته راووتل او علي مراد يې له خپل لمسي سره د پوليسو له ډلې او د تشريفاتو له سيمې نه ويوست. نندارچيان له ونو او د سين د غاړې له جګـ ديوال نه چې د فابريکې د مراسمو د سيل لپاره پې ختلي وو راښکته شول او تر عاي مراد راوڅرخېدل.

نجف د مزدورانو کړۍ ماته کړه، ورننووت او په مغګو ګانه اندازيې وويل :

کينه، دلته کينه، احمقه بوډا ! تمامه ورځ به دې ساده مزدوران غولول چې دا فابريکه د تاسې ده ! اوس پوه وی چې دا فابريکه د چا ده ؟ که نه يې پوه شوی يو ځل بيا ورشه چې پوره دې وپوهوي.

ټولو مزدورانو وخندل. علي مراد له غصې نه ډک سر راپورته کړ، کاته يې چې بدخولی او بې پروا نجف مخامخ ورته ولاړ دی. بې کميسه، برکي واسکټ او هماغه پخوانی پيوندي پرتوګ يې اغوستي وو، د تور او سپينو پرتوګاښ يې تر زنګنو پورې راځوړند او يو خيرن رنګه ټوکريې تر غاړې راتاو کړی و، لويه خوله، تنګې ستر ګې او غټه ببره ککرۍ، پولادې متې او ښياکه آمرانه وزه.

علي مراد وار د وار زړور او سرکش نجف وپيژاند او په ډک ستونې يې د لومړي ځل لپاره اعتراف وکړ:

تا رښتيا ويل.

نجف د واسکټ له جيبه يو موټی خيرن توتان راوايستل او د علي مراد لمسي ته په لمن کې واچول، بيايې مخ علي مراد ته واړاوه او ويې ويل:

وعده راکوې چې بيا مزدوران نه غولوې !؟

ـ ډاډه درکوم، اوس پوه شوی يم !

نجف وخندل او په داسې حال کې چې د علي مراد يتيم لمسی يې پخپل څټ باندې سپور کړ-ويې ويل:

فقط ته دومره ويلی شې چې نجف زما د لمسي خر دی او بس.

وروسته يې په ډاډه لهجه علي مراد ته دا خبره تکرار کړه:

دا کارګران هيڅکله مه غولوه، داسې لار وښيه چې دوی پخپله خپله دنيا جوړه کاندي.

علي مراد مزدورانو ته مخ ورواړوه:

راځی، راځی زامنو د کارخانې د خاوندانو د چړچو له سيمې رالرې شئ، هلته به ببرته راوګرځو چې دا کارخانه زموږ شي.

کابل ۱۳۴۷

# دوه جواليان

ماسپښنين ناوخته شوی و . په آسمان باندې د ژمي خړې وربځې پلنې شوې وې او د واورو وړې دانې اوریدلې، یخ باد چلیده او د واورو ځېرکي يې له يوې خوا بلې خواته شړل. د منديي چارچلند سوړ و او زياتره دکانونه تړل شوي وو.

سهراب د يوه خلاص دکان خواته د دوو پښو په سرڅک ناست و . يوه زړه شړۍ يې تر ځان راتاو کړې وه او په شايې تر شړۍ لاندې د پرسړ پړي ولونه له ورايه ږ کاريدل. د تور پټکي تلمبوزک يې وهلي و او د هغه له چاودنهيي يوازې دوه ستر ګې ښکايدلې. ها خوا د سهراب مقابل لوري ته د يوه تړلي دکان تر مخ، يو بل زلمس جوالي د جوارو انډيوته تکيه وهلې وه، لاسونه يې تر تخرګو لاندې ننه ايستي وو او د پوزې ونې او به يې په بريتونو باندې رابهيدلې. يوه زړه او پمنه قره قلي خولۍ يې په سر وه او د سپخيدليو درزونو چاودنه يې له ورايه ښکاريدل. د بر کې بالاپوش يې ډېر زوړ نه و خوزيات خيرن شوی او کرغيړن شوی و .

پيوندې کلوشې يې په پښو وې او د شړيدلي پرتوګ نه يې د زنګنو ستر ګې راوتلې وې. پړی يې درلود خو په شاسې نه و تړلی او مخ ته يې په ځمکه باندې سنبی و .

سهراب هغه سر ترپايه له نظره تېر که، مګر ويې نه پيژانده او نا بلد ورته ښکاره شو . سهراب په همدې منډيي کې ځلور کاله جوالونه چلولي وو، مګر دا سړی يې هيڅکله نه و ليدلی. دی په اوږدو فکرونو کې لاړ:

ګوره دا سړی به څوک وي ؟ .. دوه ورځې پخوا د ملا برات علاف ځلور بورۍ وړه له همدې منډيي نه ورک شول،... خدازده چا به وړي وي، که دې سړي وړي وي ؟... نه، نه، د ده رنګـ غلوته نه دی ورته، دی هم زما غوندې يو هردم شهيد سړی دی ... موږ غريبان يو، خو غله نه يو، غله نور دی !...

کله چې سهراب د چرت له اوږدو پړاوونو څخه راوګرزيده اوريا زياته شوې وه او نور د کار د پيدا مېدو چانس کم و. له ځايه راولاړ شو، خپله شړۍ يې په اوږه راسمه کړه او

مخامخ نابلد جوالي ته وگڼي. همدا چې ور نېږدې شو، غږیې وکه :
څنگه یې یاره ؟
مقابل سړي په داسې حال کې چې په بریتو کې یې د مسکا څپې زخزځیدې ځواب ورکه:
جوړ دې یې آشناء !
ـ څه نومیږي ؟
ـ پردل،
ستا نوم څه دی ؟
ـزما نوم سهراب
ـد کوم ځای یې ؟
ـد کرباغ یم .
ته د کوم ځای یې ؟
ـزه ؟ نو څه ته ووایم ! زه لا کوچنی وم چې زما مور او پلار په غوربند کې مړ شوي دي. زه هماغلته لوی شوم؛ خلکو ویل: پلار دې له کومې بلې خوانه دلته راغلی و. خدازده زما پلار به له کومې سیمې هلته غریبۍ پسې راغلی و، خو خلک وایې چې ښه سړی و .
سهراب وویل :
د پلار سړیتوب به دې څه پکار شي، دا وایه چې څه یې درته پرې ایښي دي ؟
ـ خدای دی وبخښي هیڅ نه دی ترې پاتې !
سهراب وخندل او ویې ویل ! نو څه ښه سړیتوب یې لاړه ؟
پخوا تر دې چې سهراب ددې وروستۍ پوښتنې ځواب ته انتظار وباسي، لکه یو ورک مطلب چې یې په ذهن کې سمدستي راپیدا شوی وي ژژ په تلواریې پردل ته وویل :
بالاپوش دې ښه بالاپوش دی، مگر دا بختوره خولۍ چا درکړیده ؟
ـ دا خو زموږ یوه همسایه راکړیده !
ـ ستا همسایه ؟ ته همسایه لري ؟
ـنه ، نه یې لرم !

ـ نو څنګه دې وویل چې دا خولۍ زموږ همسایه را کړیده ؛ کوم همسایه دې ښود ؟

ـ د علاقه دار صاحب همسایه !

سهراب د پردل دې هبرې ته له خندا شین شو او ویې ویل :

ته څه بلا سړی یې، پردې همسایګان خپل بولې !

پردل لږ سور غوندې شو، په لوړ او جدي آوازېې وویل :

ولې علاقه دار خو زما بادار و .

سهراب دا ځل داسې مست و خندل چې د خندې له زوره یې له ستر ګو اوښکې راوبهیدې او له دې سره یې پردل ته وویل :

ولې داسې نه وایې چې خورهم د هغه و ، همسایه هم د هغه و او زه هم د هغه وم .

پردل چې یو مخ ماتی، بې خولې او بې زړه سړی و او له بازاري کار ګرانو او د بازار له چاپیریال سره ښه بلد نه و ، د سهراب پرله پسې پوښتنو وارخطا کړ، نو ناڅاپي یې شونډې پرانیستې او په یوه کچه او بېخونده لهجه یې سهراب ته وویل :

ته پخپله ښه سړی یې ؟

ددې بې ارتباطه خبرې له اوریدو سره سم په سهراب باندې د خندې داسې لې.نۍ ځپه راغله چې کو کې یې له خولې ووتې او بلهوډې یې و نیول .

داځل یو د کاندار ته چې دوی ته نیږدې پخپل دکان کې ناست و د سهراب په لوړه خندا غصه ورغله، د دکان خولې ته یې وروداننګل او په ترخه غاړه یه سهراب ته وویل :

احمقه ځې او که در کته شم !

سهراب ځواب ورنکړ، خو خپلې غضبناکې ستر ګې یې وروااړولې او سمیستي مخ په بازار و خوځید. پردل هم راولاړ شو ، کالي یې وڅنډل او په سهراب پسې رافی . سهراب مخامخ د منډېې د لویې دروازې په سماوار ننووت، بر سرتېر شو او د تخت د پاسه په پوز کې باندې اوږد وغځیده. پردل هم راغی او ده ته نیږدې، په یوه تیاره ګوټ کې پټه خوله کیناست.

یو شیبه وروسته د سماوار شاګرد سهراب ته ویریده :

څه شی خورې ؟

سهراب په داسې حال کې چې ستر ګې یې لاً که د ښینښې مرۍ د تور لنګوټي دولونو لاندې بریښیدلې، په درانه او کرار آواز ځواب ور که : زه وروسته ډوډۍ خورم ؛

شاګرد دا ځل پردل ته مخ واړاوه:

ته څه شی خورې ؟

ـ زه یې نه خورم، ما هیڅ نه دي .ټلي !

ـ نو دلته د څه لپاره راغلی یې ؟

سهراب په دې وخت کې را په ډډه شو، نسوار یې تو کړل او د سماوار شاګرد ته یې وویل :

پرې یې بږده، پیسې نلري.

د سماوار شاګرد د سهراب دریمګړتوب ونه مانه، پردل ته پسې کلک شو او راولاړیې که. خو څنګه چې هغه لټیدو ته قابو شو، د بالاپوش لمنې ته یې د سهراب پولادي منګولې ورسیدې، دی یې په بیرته کیناوه او د سماوار شاګرد ته یې په ځیږه لهجه وویل :

ورشه ځناوره ، یوه چاینکې ورته راوړه !

د همدې خبرو سره یې د لسو روپیو نوی کاغذ له ملا راویوست او وروایې چاوه.

ډوډۍ په چوپیا کې زخوړل شوه. ګوره چې زلمیو جوالیانو به یو د بل په باره چې څه فکر کړی وي او خدازده چې د مست سهراب د خنداو کاروان ولې دریدلی و، ولې پردل ته یې ځیر ځیر کتل او د هغه له قره قلی خولۍ نه یې نظر نه غړاوه. کله چې وروستۍ ګوله جګه شوه پردل وټوخیده او کچه شانې مسکایې په شونډو راغبر ګه شوه. ښایې دی به له دې چوپیانه په تنګـ شوی و او غوښته به یې چې دا د غم کمبله ټوله کړي. سهراب ورته وخندل او ویې ویل :

وایه څه دې په زړه کې ګرزي ؟

ـ که ستا خوښه وي زه به یو ځل په کار پسې ووزم !

سهراب نو څه ون ویل، خو په یوه مسکایې دده غوښتنه تائید کړه.

پردل راولاړ شو ، خپل پړی یې واخیست او ووت.

سهراب یوازې پاتې شو، سریې په زګنو ولګاوه او په چرت کې ډوب لاړ. خدازده

د څه په باره کې یې فکر ناوه چې د جوالیانو شور بګټ یې د فکر سلسله و شکوله او وچت له ځایه راولاړ شو. د سماوار کارکوونو او میلمنو ګرد د باندې خواته منډې کړې. سهراب چې څنګه راووت سترګې یې په پردل ولویدې. زړه فره فلې یې له سره لویدلې وه . د بر کې د کوټ جیبونه او ګریوان یه شکیدلې وو، د خمتا په کمیس یه د پوزې وینې رابهیدلې، په سترګو کې سې دوه غټې او ښکې غوټه شوې وې او ګرد چاپیره جوالیانو رانیولی و.

سهراب ته سخته غصه ورغله، د جوالیانو مینځ ته ورننووت او جیغې یې کړې:

لاس ونیسئ، لاس ونیسئ!

جوالیانو لاس ونیو او سهراب ته یې کوڅه ورکړه ـ ده د پردل خولۍ له ځمکې را وچته کړه او دی یې لاس نسولی د جوایانو له مینځه راویوست.

سهراب د منډیي ټولو جوالیانو پیژانده او په درنه سترګه یې ورته کتل. دوی پوه شول چې وهل شوی جوالي د سهراب خپلوان یا ملګری دی او هغه ډېر پې خپه شویدی. یو غنک رنګی پریړ جوالي چې نري بریتونه او کوسه ږیره یې درلوده او د مندیي د جوالیانو مشر و د جوالیانو له مینځه راووت سهراب ته نږدې راغی، په اوږه یې لاس ورکیښود او ویې ویل:

سهرابه! ته ګوره دا نادانه سړی د کرایو نرخ خرابوي. څو واره ما پخپله ورته وویل چې دا پیټی تر لاهورۍ دروازې پورې لس روپۍ کرایه لري، پام کوه چې کمه یې نکړې، مګر دی حاضر شو چې په اووه روپۍ یوسی. دا جوالیان چې دی یې وهلی دی ملامت نه دي، د دغو خوارانو خو ملاوې تر دې جوالونو لاندې ماتې شوې. ډوډۍ نلري، جامه نلري، ټاټوبی نلري او شپه ورځ همدا پیټي چلوي. که چیرې د پیټي نور هم پې درانه شي دا خواران به څه کوي!

سهراب په دقت دا خبرې واوریدې. په په وچولې کې یې د غضب غوټې ویلې شوې او فقط دومره یې وویل:

د نابلدانو بلدول په کار دي، وهل یې نه دي پکار. دی هم غریب دی او پیټي چاوي.

بیا یې د پردل خولۍ ور په سر کړهؤ د پوزې وینې یې د خپل لنګوټي په شمله

وژپاکې کړې او له ځان سره یې مخ په بازار وخوځاوه.

دد کانونو او اپارمانونو د بخاریو لوګي لکه درنې وریځې بازارته راښکته شوي وو او هوایې لوګجنه کړې وه. سهراب پردل ته وویل:

شپه نیږدې شویده، ګامونه او چت اخله.

ـ چیرې به ځو؟

ـ زما ځای ته!

ـ ستا ځای چیرې دې؟

ـ ټول جوماتونه، د حمامونو ګلخنونه او په اوړی کې درست ګراژونه، د پلیو لارې، د دکانونو مخې، هر میدان او هره پوله!

سهراب پوښتنه وکړه:

ښه ستا ځای چیرې دی؟

پردل په داسې حال کې چې ژبه یې نښتله ویې ویلې:

زما ځای د علاقه دار صاحب کور.

له دې خبرې سهراب بړچ وهل او ډېرې وخندل، بیایې پردل ته وویل:

دا علاقه دار خوار څوک دی چې هر شی یې ته د ځان بولې؟

ـ دا خو زما د دولسو کلونه بادار دپ کنه! مګر زه یې اوس شړلی یم. همدانن تمامه ورځ دا سودا را سره وه چې شپه به چیرې تېروم...

سهراب په همدې ځای د پردل خبرې پریکړې او پوښتنه یې ترې وکړه:

پس له دې به څه کار کوې؟

ـ همدا جوالي توب.

سهراب پښه ونیوله او یو ځل بیا د پردل سر او اوربوز ته ځیر شو، ویې خندل او ویې ویل:

خولۍ دې جوالیانو ته نه ده ورته، ولې کلینري نه کوې؟

ـ څنګه ته کوم موټروان پیژنې چې ما کلینر کاندې؟

ـ ته څومره ساده او کم عقل سړی یې، که زه دومره معتبر وای ولې به مې پخپله دا

پیتې چلول ! !

پردل او سهراب په خبرو، خبرو کې له ښار ووتل او د واورو په یوه نرۍ منډه کې یو پر بل پسې د کلیو د جوماتونو خواته لاړل. د ماښام تیاره زیاته شوه او دوی یې پخپلو ځپو کې ورک کړل.

سهراب سبا وختي د ښار پر لور راغی. ږیره یې ببره شوې او سریې ډېر زیات ریسدلی و. په ستر ګو کې سې د فجرې خوشالتیا ګنها ټپه شوې وه او ځای یې یوه داسې توفان ته پرې یښی و چې د ګونګ او بې تعبیره انتقام بر بښناوې یې خوریدلې، قدمونه یې درانه شوي وو او په څیر کې یې د لوی غم څپو کوکې وهلې. د دکان مخې ته ورسید او بې له دې چې سلام واچوي د خپل لاس بوتل او پوړی د حکیم ذي مخې ته کیښودل :

داکتر صاحب دا بېرته واخله !

حکیم جي سهراب ته ځیر شو، بیایې لاس دواته وروغځاوه او پوښتنه یې وکړه :

ښنګه ! دوا فایده ونکړه ؟

ـ نه هغه مړ شو ! داسې وویل او بې له دې چې د دوا پیسې وغواړي په تنګه کوځه کې مخ په ښکته روان شو.

هلته یو بل سړی چې غوړه شلیدلې کرتۍ او پتلون یې اغوستي وو خپل پولادي سوک په دړه وواهه او فریاد یې ویوست :

آه مور. څومره آسان مړو !

له دې خبرې سره جوخت په آسمان کې د پسرلي لومړنۍ بریښنا وځغلیده او د تالندې هیبت د زاړه ښار ویده هډونه وریږدول او له خوبه یې پاڅول.

کابل ـ ۱۳۴۶

# خپرکی ماشين

گوره څو زره پيړۍ به په تېرې هسکو غرونو تېر شوې وي ؟ څه شپې ورځې، څه سخت ژمې، څه واورې ، امرې او څه چپاوونه به يې ليدلې وي ؟

څومره بېوزلي پرديسان به ددې جادو گرو غرونو په گردلو او د واورو په لېږدونو کې بې لارې شوي او په شاو خوا پسچو کې مړه شوي وي .

څه قافلې، څه مهاجرين او څه اښکرې به د توفان په منگولو او د ژمې په هيبت کې نشت شوي وي. د دې سيمې د افسانوراويان، د دې غره د هرې درې، هرې څو کې او هرې لارې په باره کې يوه افسانه لژي.

د لرې سيمو خلکو دا روايات نه دی اوريدلي، ځکه د دی غرونو عجائباتو نه د آيرنتيا په سترگه .وري او د هر څه په باره کې پوښتنې کوي .

گوره، دا دغره په وليو پاس حوض به چا جوړ کړی او شکولی وي، د څه د پاره، داولې ؟

د سيمې سپين ږيری وايي چې دا حوض ديبانو جوړ کړی او ښاپيرۍ بخ پکې لمبيدلې.

نو گوره چې ښاپيرۍ به څنگه په داسې سړو اوبو کې لمبيدای شوي !

سپين ږيري وايې : ماشين ناولی شی دی. له هغې ورځې چې د ماشين آواز د سالنگ په غرونو کې خپور شو، ښاپيرۍ له دې سيمو څخه والوتې او « کوه قاف» ته ولاړې .

ته دا ماشين و گوره ـ ماشين ! دا بې زړه او بې وينو ديب ، دا د او سپنې ځناور .

ورويې له ځان سره و خندل، پخپل زړه کې يې پټ وويل :

تـه خو گوره پـه دې پريړو غـرويې څـه و کـړل ! ولـي يـې ورمـات کـړل، پـښـې يې وروڅيلی او مخامخ يې په زړه ورننووت .

ريښتيا دا خپرکی ماشين څومره ښه ملگری دی، څومره منونکې او شرافت مند دی ! له هر نژاد، هرې ژبې، هر مجهب او هر ملت سره يو راز کار کوي. دی د انسان ملگری دی، د انسان !

دی رشوت نه غواړي، طمع نه لري، د چوکۍ لیوني نه دی، په القابو پسې نه گرزي، فقط کار کوي ـ کار !

زما خږکیه ماشینه ! زړه مې غواړی چې یو ځل دا ستا په دوړو پټ ځنځیرونه، دا غوړې خیرنې متې او دا تور او لوگجن دروي(۱۲) سر تر پایه مچ کړم او خپلې ستر گې پې وموښم. که دا ستا پولادي منگولې نه وای چا به دا د خاورو او ډبرو غونډۍ په بل مخ اړولی. که ستا تیره غاښونه او نیوې نه وای نو څنگه به د دی سر ټمبه او نامنومکې غره گیډه سورۍ کېده او غریبگوټې انسان به لار پکې ایستله ؟

دی لا د خپل فکر په سلسله کې سر گردان و چې لمر د غرونو شاته ته ننوت او د ختیځ د ماښام کمپله ورو ورو د جگو غرونو په آسمان کې پلنه شوه، سړه سیلۍ راوالوته، یخنی زور ونیو او دی د تیږې له اړخه یو جگـ غټې(۱۳) ته وخوت. پورته د درې په وروستۍ برخه کې ، دوو ماسینونو د تونل له خولې نه د اضافي خاورو او ډبرو وروستۍ کوټې ښکته مخ په ځوړه تویولې او دوړې یې ځپه ځپه مخ په ده راتلې. د کار د قواو افراد او کارگران کتار کتار او یو یو د افتنور(۱۴) پلو خپلې قرارگاه ته راروان وو. دوی هغو ښکاریانو ته ورته وو چې په بدو شرایطو کې نابېره له خوني ځناور سره مخامخ شوي وي او له ډېرې سختې مبارزې وروسته پې بر شوي وي او بیا سترې ستومانه د یو چوپ غرور تر هوا لاندې خپل کلي ته راستانه وي.

لاندې د درې له کوزو برخو څخه تور سړک په سینه باندې د کارموټرونه رابهیدل او لکه اوراورکې(۱۵) یو په بل پسې راروان وو. په تیارو پیچونو کې لکه د څرغونو امیل او ښتل را او ښتل .

---

۱۲ـ دروی = نله، د لرگی شپېلۍ، دلته دود کش او د لوگی وتلو نه مطلب دی

۱۳ـ غټې = لوره ، هسکه

۱۴ـ افتنور= د یوه ځای نوم دی

۱۵ـ اوراورکي = هغه الوتونکې خزنده چې د شپې رڼا کوی او په دري ژبه یې ( کرم شبتاب) بولي .

غرونه ډېر درانه ښکاریدل. آسمان زښت ښایسته شوی و او لکه د مرغلرو ادنې ستوري ورباندې ځلیدل. پردل وار په وار خپلو اندیښنو د تېرو خاطراتو غیږې ته ورغوځاوه، د لوړوغرو په لمنو کې دسپیدو ننداري؛ هر سبایي د کار سیمو ته د موټرو ، ماشینونو او خندیدونکو زلمیانو لړد او شور؛ د رخصتۍ د ورځو میلې او سندرې، له غرو او غونډیو سره جګړه؛ په ژمي او توفان باندې برى؛ له طبیعت سره مبارزه او له بشریت سره مینه

او ....

پردل نه پوهیده چې څه ور شویدي، ولې دننه په زړه کې ځوربږي؟ د څه لپاره غواړی چې تل ددی ساړه او ځیږه سالنګ په لمنو کې پاتې شې ؟ ولې، ولې ، ولې ؟

ځوان پردل په خپلو افکارو غرق ، لوی سړک ته راکوز شو، لار باالکل تیلره شوې وه او ده تمامه ورځ د غره په جګو لمنو کې تېره کړې وه. ده نن هغه ټولې سیمې له نظره وایستې چې ده د خپل یونیم کلن عسکري خدمت په موده کې هلته زور ازمویلی وه، خولې یې تویې کړې وې او له هر کمره او هرې تیږې سره یې بلد و. ده ته ددې سیمې هر بوټې او کاڼي لار شوو له او له هر موټې خاورې نه یې د خپلو خلکو او وطن د مینې وږمه ورتله. هماغه شپه ده ډېر غوښتل چې د سالنګ او خپل ماسین په باره کې یوه حماسه ولیکي او خپل سرکش روح په تسکین کړې، مګر ګوره څه پې شوي وو چې شعر یې نشوای بسکلای او کلمات ځنې تښتیدل.

شپه پخه شوه. د کارګرانو په کاغوشونو کې د سور او ځوږ جوش کینستی و. ځای ځای په کټونو باندې دوه، دوه ، د ګې،درې ، پنځه،پنځه انډیوالان سره ګوښي شوي وو، ټو کې ټکالې، آزادې مرکې او یا جدي بحثونه یې سره کول. په ځینو ګوښو کې ترخیصي افرادو سندرې بللې او په زوره، زوره یې خندلن دغه شپه د کارګرو او افرادو تر ټولو خوشالوونکې، بختوره او نیکمرغه شپه وه. په سالنګ کې ډېر ستر او درونډ کار سرته رسیدلی و او د لومړی ځل لپاره د سالنګ هیبتناکې او خوني لارې د موټرو کاروانونو ته

خپله غیږه خلاصوله. پردل په همدې شپه کې غلی او غمجن بې حرکته او وچ کلک پخپل شکیدلي کټ ناست و او سریې په زنګنو لګولی و ، د خپل بستر د شړی شړیدلې څنډه چې همیشه به یې تر بستر لاندې پټوله نن یې او څه پرې ینبی وه . ږیره یې د عادت په خلاف ببره شوې او د سر پر ویښتانو یې د وږمې د دړو او خاورو آثار لا پاتې وو . د پخوانیو شپو مستۍ او خنداوې، ټوکې او ټکالې، شعرونه او سندرې ګرد سره ځنې هیر شوي وو . پردل هغه پخوانی پردل نه و او یو مړ ژواندی غوندې شی ورڅخه جوړ شوی و . انځر لا د مخه د پردل په وزه پوه و، نو څنګه چې کاغوش ته راننووت، مخامخ وژغی ورنږدې شو، لاس یې په ولې ورکیښود او په کراره یې وپوښته:

دا ولې داسې خپه یې ؟

پردل سر رااوچت که ، په ځیر ځیر یې انځر ته وکتل او بیایې په یوه ترخه مسکا کې ورته وویل :

د دې لپاره چې د سالنګـ د لارې کار تمام شویدي.

ـ اوهو ؛ ته نو د سالنګـ په تمامېدو خپه کېږې ؟

ـ هو ؛ او دا ځکه چې د کار تمامیدل ما له خپل ماشین نه بیلوي !

انځر دې خبرې ته کټ کټ وخندل او ده تې یې مخ راواړاوه:

ما ته دې د یوه کزچي قصه را په یاده کړه. هغه به چې خپل اوښ ته وابنه ورواچول لکه میخ ځای په ځای به ورته ناست و او بیا به چې چا پوښتنه ځنې وکړه هلکه ! ولې خپل اوښ سرته لکه د غم څلی سوټ موټ ناست یې ؟ کوچي به په ځواب کې ورته ویل : دا ځکه چې د خپل اوښ شخوند مې ښه ایسي او خوند راکوي. ته هم کټ مټ هماغه کوچي ته ورته یې، مګر ستا او د هغه تر مینځ دومره توپیر شته دی چې هغه په یوه حیوان باندې چې سایې لرله او د خپل خاوند تمیزیې کولای شو مین و او ته په یوه ټوټه او سپنه چې نه سا لري او نه حس، نه تالیدلی شی ، نه پیژندلای !

پردل یوه شیبه غلی و وروسته یې سر راپورته که ، ستر ګې یې ورپېدې د پوزې ځوکه یې سره شوه او ملګري ته یې په کلکه وویل :

هو ، انځره ته ریښتیا وایې، ماشین حس نلري، مګر موږ خوېې لرو. په نړۍ کې دا د

او سپنو، گچو، ار گيو او نورو شيانو څخه جوړ شوي يادگارونه ولې لمانځل کېږي؟ حتی په ځينو هيوادو کې رسمي ميلمانه هغوی لمانځي او پښوته يې گلان ږدي .

دا ولې ؟ . . .

آيا دغه يادگارونه احساس لري ؟

آيا دغه درناوی له دغو بېځانه يادگارونو سره مرسته کوی شي ؟

ته بايد پوه شې چې بشر يوه تنده لري. دې تندې ته عاطفه وايي. د انسان عاطفه د ده سړيتوب اساسي جوهر دی. انسان همدې عاطفې انسان کړيدي. انسان پخپله مينه کې، پخپلو دوستيو کې او کله کله حتی پخپلو غمونو کې او ژړاو کې همدا عاطفه ښکاروي. وطنپرستي پخپله تر ټولو ستره او مقدسه عاطفه ده. که څه هم وطن دا عاطفه نشي حس کولای، مگر موږ خويې حس کوو او خپل ژوند پې ښکلی کولی شو .

په ما دا خپل ماشين ځکه گران دی چې هغه زما لپاره اولس او وطن ته د خدمت کولو ډېر لوړ امکانات راکړل. هغه په يخنيو کې، په بادونو، اوريا و په تيږو او سختو لاروکې زما هڅې او زحمتونه کامياب کړل او زه يې د وطن د خدمتگارانو په صف کې ودرولم. په کوچې باندې خپل اوښ ځکه گران و چې هغه به د کوچي کورنۍ او ماشومانو ته د ژوند شومه پيدا کوله، هغه ته يې د مشروع گټې او د روا فعاليت امکان ور کړی و ، ليکن زما ماشين د يوه ستر ملت او زما د مورني هيواد د آبادولو په چاروکې له ما سره مرسته کړيده او ما ته يې د «ماشينکار» د ستر لقب افتخار رابخښلی دی.

زه رښتيا له دغه خړ کي ماسين سره مينه لرم. اوس چې زموږ خدمتونه د سالنگـ په واټ کې سرته رسېږي ما ته تر هر څه دا سخته ښکاري چې له خپل ماشين نه بيل شم او خدای پاماني ورسره وکړم .

کله چې د پردل خبرې دې ځای ته ورسيدې انځر په مينځ کې وروداننگل او ويې ويل:

پردله ! ته خو لکه دې نورو غوندې بې سواده او ساده سړی نه يې، تاغوندې يوه پوه زلمي نه دا توقع نه کيږي چې د هيواد په يوه داسې ستره پروژه کې يې کار کړی او هغه يې کاميابه کړې وي، بيا ددې په ځای چې خوشاله وي او ځان جشن ته چمتو کړي، هغه دې

پخپل ماشین پسې ژړېږي او د او سپنې په یوه بې ځانه مجموعې پسې دې خپه وي. په دې باب کې یو کلنګ، یو یوم، یو زنبیل او یو ماشین هیڅ توپیر نلري او نه ښایي یو عاقل انسان له هغوی سره داسې تعلق ونیسي، لکه له ژوندیو مخاقاتو او انسانانو سره یې چې نیسي ځنګه پردله، داسې نه ده؟

ـ نه، نه، زما لپاره هیڅکله داسې نه ده، که زما نظر چا منلی وای ما به دا خبره کی ماشین چې اوس یې غاښونه هم پخ شوي او زوړ شویدي، هالته بر د تونل د خولې څخه پورته په مخامخ پرښو باندې ایښی و او ترې لاندې به مې لیکلي وو:

« دا د هغو خلکو د پیړۍ د کار وسیله وه چې دا سخته لاره او سرکش غرونه یې هوار کړل او د انسان هیلې یې پې و منلې ».

ملګریه! د او سپنو ماسینونه تر هغو انسانانو ډېر ښه او ارزښت من دی کوم چې د اولس د خلکو غوښې او وینې خوري او کله چې مړه شي، نو بیا د نورو لیوانو په سلهاو مودرونه د هغوی د ځنازې په موځر پسې ور روان وي.

زما عقیده داده چې باید یوازې د خدمتګارانو قدر وشي او دا هیڅ فرق نکوي چې دا خدمتګاران له او سپنې څخه جوړ شوي وي او که له غوښو او هډوکونه!

که دا ماشینونه چې سرو کال موږ پې سپاره یو او هر کار پې کوو له هغو انسانانو سره مقایسه شي چې هیڅ عملي کار د وطن لپاره نه کوي او تل د وطن د زامنو په اوږو سپاره وي او ددې مقایسې قضاوت تاته درکړی شي ستا حکم به څه وي؟! دا کاریګر او خدمتګار بې سا ماشین به ښه بولې او که دا بل بېکاره او طفیلي ژوندې انسان؟ دا د حس او شعور غل خاوند او که دا بې حسه او بې شعوره معمار؟

کوم یو؟ و وایه کنه!

انځره! دې خبرو او تورو ماشینونه ته په سپکه ستر ګه مه ګوره، زه د دې ماشینونو په آواز کې، د سرتګانو د چاودونو په آواز کې، د تیږو د ګغښتو او د غونډیو د نړیدو په آواز کې او په تېره بیا ستاسې د ساده نارګرانو په سندره، پولیو او شورماشور کې د خپل وطن آواز اوروم. زما د ماشین آواز زما د وطن حماسه ده او زه حق لرم چې ددې حماسې پر شاعر مین شم.

داسې ورځ زما نه یادېږي چې زه دې ماشین ته ختلی یم او دی دې نه وي چالان شوی. ده زما ټول همرونه او غوښتنې تر سره کړېدي. دی زما هغه خوږ ملګری دی چې زما ستر هیواد او لوی اولس ته یې د مستقبل لاره هواره کړېده او له همدې کبله زه پې مین شوی یم.

د پردل او انځر له دې بحث نه شل شپې وروسته د سالنګ په تاوراتاو دره کې یو ټولګی چې د خدمت دوره یې په سالنګ کې خلاصه شوې وه مخ په ښکته روان و او دا ترانه یې په ګډه بلله:

دغه پرښې، دغه غـــرونه
دغه تـــړې، دا خـــوړونه
دا ژورې ستـــرې کندې
دا پیچـــومې، دا مـوړونه
تا سیخ کړي، تا سم کړي
تا جګ کړي، تا تم کړي

خدای پامان خره ماشینه!
خدای پامان خره ماشینه!

دغه غـــــــرونه به آبـــاد شي
زموږ زړونه به پې ښـــاد شي
د وطن له ټـــولو خـــولـو به
یو ځای جګ به دغه غریاد شي
«آبـــادیږي پې ورســـم شئ
وطنــــوالو! ورته تـــم شئ»

خدای پامان خره ماشینه!
خدای پامان خره ماشینه!

اوس چې ستړي او ستومان یو
له سالنـــګـ څخــه روان یو
ستا وفـــــــا به نکـړو هېره
موږ سپېڅـــلي افغـــانان یو
ای د غـــــرونو پهـــــلوانه
ای د تیـــــــــږو قهـــــرمانه

خدای پامان خړه ماشینه !
خدای پامان خړه ماشینه !

د سالنګـ د پرانیستلو ورځ : کابل ـ ۱۳۴۳

# د سین سرود

پیړۍ، پیړۍ تېرې ضوې او دا مغرور سین د هندوکش په تاوراتاو دروکې لا خپله انقلابي حماسه بولي :

« تل به زما په ځپوکې د خوځېدو، منډو او یرغل قوت ژوندی وی، زه د سمندر د ځپو ټکرو او د لمر وړانګو زېږولی یم ؛

زه د زوررورو او سترو توفانونه په زانګوکې روزل شوی یم ؛

ماته ته تالندې، برېښنا او یاغی بادونو للو ویلی ده ؛

ما د سمندر په تیاروتلوکې له نهنګانو او سترو کبانو سره لوبې کړیدي او د آزادو سیلیو تر بولۍ لاندې مې له ساحلي غرونو، کمرونو او ځنګلونو سره غېږې نیولي دي ؛

زه د استوا ګرمیو او قطبي سخنسو ازمویلی یم ؛

ما د توفان په منګولوکې زړور ماهوګان بلدلي دي چې ثنګه د وحشي او فهرجنو دپو تر یرغل لاندې په سره سینه د خپلو هدفونو خواته خوځېږي ؛

ما د پرمختلونکې انسان د زړه قوت او د سترو برېښنا ازمویلی ده ؛ داسې انسان تر ترږمۍ او توفان ډېر پیاوړی او تر برېښنا او اندر خورا چټکـ تی . »

« زه د ګړنیو وریځو په وزرونو باندې له هر هوارو سمندرونو نه د لوړ هندوکش څوکوته راوختم، دلته مې د وریځو مستۍ، د بادونو له توندۍ، د باز ته ګړندیو او د سیلاب له هیبتناکو موزېډو نه نوې حماسه زده کړه ؛

زما ددې حماسې قهرمان هماغه زړور او پیاوړې انسان دي کوم چې واورو، بادونو او سیلابونو راچاپیر کړی، مګر سر نه ټیټوی او نه تسلیمېښي ؛

زه له همدې انسان نه الهام اخلم او په نا آزمویلو لارو، کمرونو او دروکې لاروهم او د بحر خواته خوځېږم ؛

زه قدم په قدم خپله حماسه تکراروم؛

باید د سیندونو او غرونو حماسه یو شي؛

باید ټولې سندرې، ټول سرودونه او ګردې حماسې یو شي؛

باید ټول مقدس غضبونه، ټولې کوکې او فریادونه، ګردې ټپې او درست توفانونه سره یو شي او په ګډه د نوي، زړور انقلابي انسان د زغم، جرأت او پرمختللو حماسه بشپړه کړي؛

زه د څپو، توفانونو، ځغاستو او ژوند استازی یم؛

ځکه د آزاد انسان د خوځېدو، پرمختګ، یرغل او رزم حماسه بولم؛

غر او هواره، سین او بحر، با او باران.... دا ټول د زیارایستونکي انسان د سترې جګړې حماسه بولي.

د انسان هڅه او جګړه، د انسان تکل او یرغل، د انسان ژوند او هدف تژ ټولو اوره حماسه او تر هرې سندرې ښکلې سندره ده.

او زه به تل دا سندره ژوندۍ او سپېڅلې وساتم!»

پلخمری-۱۳۴۸.٦.۱۵

# نوی گردان

د شیرمیرگن [۱٦] د جومات په برنده کې مې کرئ ورځ دعربي صرف گردانونه یادول: ضرب ، ضربا ، ضربوا ...

ماغزه مې ستړي شوي وو او سر مې کلک خوږېده .

هالته پورته د جونغر [۱۷] د زمان ځپلې غره پر پستو ډډو باندې د رنگینو وریځو یو ښایسته کاروان راکوز شوی و . بې له دېنه چې باد د وریځو شملې و خوځوي د لړو رنگین کاروان ورو، ورو په پرښو او پاڼونو باندې وزرغوړول او پر هوارو تم ځایونو باندې یې اکه مرمري پرجونه ځای پر ځای تاڼوبي کول .

د جومات د حجرو له شانه د ابو د ژرندې موزون او نه شلېدونکې غورمي چاپیریال ته خپله زړه همسشنی موسیقي او لرغونی تصنیغ تکراراوه .

د ستومانو ماغزو د کرارولو لپاره مخ په شنو کروندو ووتم. د اوبو کوچنی لښتی په شگلنه او کریېړنه ځمکه کې کوږ، ووږ کوزنیو کلیو ته بهېده. د پلیو نری لاره د ځوځانو او وحشي بوټو تر مینځ له نري لښتي سره غبرگه ځوره شوې وه .

شاوخوا د بزگرو کلي او کورونه، جونگړې او څپرې او پر دیوالونو باندې د چاپکو کتارونه ، د کلي مخ ته د ایرو او کثافاتو ډیرلنونه او پې د پاسه د کورنیو چرلانوبنډار، د بوره پټیو، د وچو وښو پر ډنډرو خځلو کې څو ډنگر سر گردانه خوسکي، ځای ځای د هستو.نې جونگړو تهخ نېږدې د توتانو یوه، دوه ونې او ترې لاندې د کلي ماشومان د خاورو د لوبو بوخت وو. ورایسته په لویه لار کې سوځوونکې لمر ته پر تاوده پوټې باندې یو تور خر د ایتراحت لپاره اوږد غځیدلی ، داسې چې ته به وایې سا ترې ختلې ده. یو خړ خړل

---

۱٦ـ شیرمیرگن = په دانه غوري کې یو کلی دی او سلیمان لایق طالبې پکې کریده.
۱۷ـ چونغر = د پلخمری اولسوالی کې د غورې په سیمه راڅرخیدلی غر دی، سلیمان لایق

د خپلو شعرونو لومړنی اثر د همدې غره په نوم نومولی دی .

سپی چې غرونه او لکۍ یې ترې پرې شوې وي، داسې قابو پر سینه باندې پروت دی چې مچ یې لا نه وي لیدلی بیایې خوله وراچولې وي .

د اشیاو، رنګونو او تصویرونو په دنیا کې وړاندې روان یم او خوځېږم، خو د ستر ګو کامرې مې هماغلته پر هماغه یوه تصویر باندې فوکس شوې دي .

ضرب، ضربا، ضربوا . . .

زړې خونې، زاړه کلي، زړې لارې، زاړه لښتي، هر څه او هر څه لکه پخوا، کټ مټ لکه پخوا ؛ اوله دې ګردو سره د شیرمیر ګن د جومات دالان او حجرې او په زړو حجرو کې هماغه زاړه درسونه : ضرب، ضربا، ضربوا ـ یعني یوه تن وواهه، دوو نتو وواهه، دریو یا زیاتو کسانو وواهه !

هڅوک دا پوښتنه نه کوې چې څوک یې وواهه، چا وواهه چېرې وواهه او ولې یې وواهه او ددې وهلو او جګړې داستان ولې نه ختمېږي ؟!

پښې مې خوځېږي او پر نرۍ لاره مخ ښکته بهېږم . ماغزه مې د عربي ګردان تر ګذارونو لاندې میده میده دي او سخت درد کوي

ضرب، ضربا، ضربوا . . . مې د بدن ټول ذرات ډک کړي دي او یوه شېبه مې له خپل عقل او ذوق سره خوالې ته نه پرېږدي.

په دې ناپایه ګردان کې زه د دایرې یوه نقطه یم. په دې ګرځنده دایره کې زما په څیر ملیونونه نقطې یو د بل لاره تعقیبوي او ددې ګردان نا تمامېدونکې رنځ او عذاب ګالي.

دا دیارلسمه پیړۍ ده چې د شپې ستورې او د وږمې ښورې د دی ښایسته چونغر په لمنو کې زموږ له خولې نه همدا یو تکراي ګردان اوري : ضرب، دربا، دربوا . . . !

دا ګردان نه دی، ګرداب دی ، ګرداب ؛ له هماغه ځایه چې شروع کېږي، پر هغه ځای راګرځي او تکرارېږي.

داخو لږ وخت نه دی، پوره دیارلس سوه کاله دا ګرداب پخپله دابره کې راڅرخېږي او زموږ ماغزه، عقل او وجدان پر خپل ځان را چورلوي.

د عربي گردان په جنگ، جگړه کې به مې ناخاپي نظر د ښایسته جو نغر د پاسه، د وریځو پر لړونو پریووت. بندي او لیوال زړه به مې بې واکه د فخیل په قفس کې وزر وزر وپول. شعر ته ورته رنگینی او سندریزې جملې او الفاظ به مې په ذهن کې راپیدا شول، په ماغزو باندې به مې د عربي گردان تندر راپریووت، ناخاپي او بې ارادې به مې د ژبې تبۍ د همیشني عادت په ژرندهکې په خوځېدو شوه او د ضرب، ضربا، ضربوا گردان به د راغلی الهام پر مخ ور وتاړه.

د عربي گردان په تنراولو کې روان یم او پسې ځم. پښې مې خوځېږي او شاو خوا ځوځانو، گنگانو(۱۸) او نورو وحشي بوټو له چم نه تېرېږم مگر سترگې مې ترې خحوند نه اخلي. کربوړې، چرمشکۍ، میږتانه، غوباړی او راز راز ژوندی ساري په بوټو او وچو وښو کې ښوري، مگر زه یې نه وینم. په ولاړو غنمو کې د باد شرنگۍ، د لښتي د اوبو زمزمه او د لارویو خرکارانو سندرې مې پر غوږونو باندې کیني. هیڅ شی نه اوروم، د ټولو پر ځای باندې هماغه یو گردان اورم، هماغه وینم او تکراروم یې :

ضرب، ضرب، ضربوا.

د عربي صرف د ځورونکې گردان په تکرار کې له خپل سر خوږي سره یو ځای د عزیزاکا د سبو کروندې ته راورسېدم.

عزیزاکا، هماغه پخواني مهربان بزگر په پولو کې کارکاوه او تر بیلهیو په خټو کې خښ و. زما د پښو ښکالو(۱۹) یې واورېده، راویې کتل، یوم یې د لښتي په پوله باندې ودراوه، لاس یې د وروځو د پاسه پر تندي باندې لمر ته سپر کړ، ښه راته ځیر شو او بیایې زما پر لور پښې راسپکې کړې او په منډه کې یې مخاطب کړم :

ودرېږه، آخندزاده ودرېږه؛ چې جواری سره وخورو!

---

۱۸ ـ کونگه = د (مردغه، ترخه) په تول، یو سارانی وړوکی بوټی دی چې سپیدارته ورته پاڼې لری او د سوزولو لپاره په کارېږي. د پکتیا په دښتو کې زیات موندل کېږي

۱۹ ـ ښکالو = یو کمزورې آواز چې د یو موجود سته والی علامه وي په دری ژبه کې (شرفه) ورته وایي.

هماغه پخوانی عزیزاکا، خو تر پخوا ډېر زوړ شوی او یوه ستوی سوی، ملایې د ربړووکې کار، اوږده فقر او زړښت له امله لکه لیندۍ راکږه شوې. وزرونه یې لکه ګرمۍ وهلی چرګ ځوړنږ دوې او ګامونه یې ارت، مګرېې واکه او بې موازنې، تر ملایې د سر تور لنګوټی تاو کړی او بریښنده خیرنه خولۍ پر سر، په خولو کې خیشت پیشت راورسید او سمدستي یې متې رانه چاپیر کړې. د تروشو خولو او خپرو ډډوزې
ځینې پورته شوې او په دې توګه یې د دوستۍ او پلارولې مینه وپالله.
ناڅاپه مې له خولې ورته وویل:
په دې زهیر ځان او په دې عمر؛ لا ترکله...؟
ده وویل:
هو؛ نو څه وکړم؟ دغه به له خدایه راته مقرر وي!
ما ویل، زلې؟ اوس هو بهرام، جلیل او جمیل مکږه زلمیان او د کار یږي دي!
ځیر ځیر یې راته وکتل او د سترګو په ځیږمونې یې یوه نرۍ ویانده او غمجنه مسکا ورپیده.
ما ویل: ولې؟ ولې؟
عزیزاکا ځواب راکړ: بهرام په عسکرۍ کې مړ شو. جلیل د خواجه الوان په لوونو کې لمر وواهه او د خدای په رضا لاړ. جمیل خوارکی د پښو له خوږو شل شوی او د هغو نورو ځوانیمرګانو له ښځو او ماشومانو سره ماته را دغاړې دی...!
سر مې چکر وواهه، نرۍ مې ه غاړه کې کړۍ شوه، د عربي ګردان ځړیکې مې لکه پولادي ځنځیر په ماغزو کې وښوریدې:
ضرب، ضربا، ضربوا...
د عزیزاکا له سترګو نه دوه رڼې اوښکې راوبهیدې. زه بې طاقته شوم غره ته مې مخ ورواړتوه. شاعر چونغر سپینو لړو ته تور رنګ ور کړی و او هغه یې له کمرونو او تبیو څخه هواته پورته کړی وې. توفاني باد دوریځوسره بیرغونه څوکوته خیژولي وو. آسمان لومړنۍ غصه پیل کړی وه او ځوانو سپلاوونوته یې د ځوړندو پټیو او کږو لښتو پر لوري د یرغل کرښه ورښووله. دتالندې جیغو او د برښنا تازینو د ځمکې ټول ویده رګونه

وخوځول. ییپاوړې باران، سرې سیلۍ او د لندې خاورو بوی زما ناکرارو او رنځورو ماغزو ته دمه ورکړه او زه یې د برېښنا او تندر په کړنګارکې د زاړه ګردان د تاریخ ځپلې دایژې له طلسم نه آزاد کړم.

له درانه خو به راویښ شوم، تور ویښتان مې سپین شوی وو. پاڅیدم، څادر مې وڅاتړه.

جومات نوی شوی و، طالبان نور وو او د زاړه ګردان پر ځای یې دغه ګردان زده کاوه: ډوډۍ، کور، کـــالي !
سوله، آزادي، سوکالي !
خلک، ګوند، انقلاب !

پاس په جونغر باندې د وریځو سور بیرغ کې د غروب سکروټو کې یې د غیلان (۲۰) د وینو رنګ اخیستی و د نیلي آسمان په زړه کې رپیده. په راځوړندو ناوو او درو کې د سپینو وریځو پټارې د غره د کمیس تر لمنو پورې راغځیدلې وې.

زه د شعر پر ټال وختم او تر نوي ګردان لاندې مې دغه ټکی زیات کړل:
ښکلا، مینه، شعر، موسیقي او نیکمرغي !

کابل ۱۳۵۷.۲.۲۰

---

۲۰ـ غیلان = د خراسان د شعوبی نهضت یو قهرمان

# پښېمان سرباز

د مني د مازيګر زېړ بخون لمر ورو، ورو د لويديځو غرو واورينو څوکو ته راکوزېده. د تورو وريځو يو ه ستره پاغونده د لويديځ له لوري ختيځ پلوته د شينکي آسمان په دړه رابهېدله، ښکته په تنګه ژوره دره کې د پنجسير سين د څپو دهاتيانو پر ليکه کوږ ووږ روان و. ورلرې د کوهستان پر هوارو شنو کرونو کې شين خپله سينه پراخه کړې وه او د شنو باغونو د ونو له څانګو او څڼو څخه يې مچې اخيستلې. د اوړې موسمې يادونو د باغونو په زرغونه بحبره کې ځپې وهلې او د مستانه سين سيرودونو ته نڅيدل.

بابه خان د لوړيدونکي غاښې پر ډبرينه سينه د خپل مشکي آس تر جلب لاندې په ستما، ستما پورته خوځيده. د ښي لاس ماتو شويو هډو کويې ځړيکې وهلې او توده تبه يې د ټول وجود په اندامونو کې خوره شوې وه. د کروندو او د سين د غاړې د وحشي وږو بوی د مساله دارې شوروا او تودې ډوډۍ عطرو او له پيغلې سره د چغلبازيو تخيل پر زلمي سرباز باندې د پيچومې ختل آسانول. په بېخوبه پړ سيدلو ستر ګو کې يې د ستومانوونکو ترخو پېښو بيلګې ښکاريدلې، رنګ يې الوتی و او په ښه کې يې د درد او کسات لمبو ځپې وهلې.

د آس پر ساغرير يې يوه زړه خورجينه چې ښه نه و مصبوط شوې اې خوا دې خوا زنګېدله. آس يې ستومانه شوی و، په ښي لاس نګوښيده او په مټکی پر لار روان و.

بابه خان ته د پرنګي په جګړه کې خپل سرګذشت ورياد شو. ده ته په کابل کې د ۱۸۷۹ کال د نوامبر دا دسامبر بريالي يرغلونه ورياد شول:

«هغوی به اوس چيرې وي، په څه کار لګيا دي، محمد جانخان وردک، ملا مشک عالم او دا زموږ زمری ميربچه ...»

بابه خان د شيرپور پر عسکري کلا باندې د ۱۸۷۹ م کال په يرغلونو کې د کوهدامني ميربچه خان تر مشرتوب لاندې ګډون کړی و. د هغه وخت تاوده او وياړلی خاطرات ورياد شول، په بريتو کې يې نرۍ مسکا وخوځيده او پخپله برخه يې شکر ويوست

. له غازي محمد جانخان سره د پيژند گلوۍ پښنه وریاد شوه ، ستر گې يې له مينې او عاطفې ډکې شوې ، د رړا ميل ورپيدا شو ، مگر ويې نه ژړل او له ځان سر يې وويل : ۲ د ميړنيو حق په او ښکو نه ادا کېږي، په وينو ادا کېږي » . مات لاس يې څړيکې ووهلې . د ۱۸۷۹ کال د نوامبر په مهال د کابل په ښارکې د انگريزانو په لاس د وطنپالونکو پانسي او اعدامونه وریاد شول، د کرکې او کسات توفان يې په مغزوکې راپورته شو، پر مخ باندې يې د خولو نيز راخوځېده او په ريږدونکو بريتويې ننووت. مات لاس يې د غاړې له پټارې نه بې ارادې د تورې په لور اوږد شو او بابه خان يې د درد له زوره لکه سوی سکور تک تور کړ، ځای پر ځای ودريده، ستر گې يې له درژه پټې کړې او پر کيڼ لاس يې د ټپي لاس ځنگل راتم کړه .

يوه شېبه وروسته يې د اميدوارو ستر گو کونجونو ته د مسکا څپې ورسيدې تندی يې ورين شو، بې واکه يې کيڼ لاس په برستو راتېر کړ او ستر گې يې مخامخ تر ټولو په لوړه څوکه خښې شوې :

.... د سيخيلو او جمالاغې جگړه هم ، گرمه جگړه وه ، ... کاک گوزارونه مو ور کړل. خو جنگ جنگ دی، تل او هميشه بری نه راوړی، مگر نه، نه ... که خيال گل مورچه نه وای خوشې کړې گور که کپتان به زما شاته نهور سيدلی او ما به په هغه باندې د تيښتې لار ترلې وه. هی هی چې هم زخمي شوم او هم ښکار له لاسه ووت ... تر زرو نامردانو يو مرد ښه دی ـ مړ به دې کړي، مگر وبه دې نه شرموي. گوره چې کله به بيا زما جنگي وزر روغ شي .

بابه خان ته خپله پيغله ورپه ياد شوه، د خولې څوابنتی [۲۱] يې سره وغځيدل او د جنگ له ميدان نه دځوانۍ او مينې د ليو نتوب ساراته ورننووت.

آه کور دې وران شه څومره ښايسته يې !

آيا هغه به باور کړي چې ما دومره ميړانې کړيدي ؟ تو که زما په ميړانه شکمنه شي څوک به زما صفايي کوي ؟ او که داتور شک په ما پيدا شي، زه به بيا له کوره جومات ته د

---

۲۱ ـ څوابنتی = وښکی .

هغه لښتي پر ښنڼه ښنګه ځم چې د کلی پیغلې هر ماښام پې راپنډېږي .زه به د کلي نجونو ته یو نامرد او له دښمن نه راتښتیدلی سړی ثابت شم. زما نجل ته به په پیغلو کې څه غرور او عزت پاتې شي. د پلار او ږمیږ به مې له شرمه په ګور کې رامات شي. جومات او زموږ هدیره به سپکه او پر ما به د ټول عالم ناورینونه را واوریږي.

بابه خان د کور او جګړې د میدان تر مینځ لا په خوږو تر خو تصورانو کې د غره په جګه سینه الویزاند روان و چې په پورتنیو ټړو کې د ټوپک د فیر آواز جګ شو او د غرونو په شاوخوا لوړو کې یې غځونې وکړې. بابه خان لکه تر هېڅلی غر ښنی ځای په ځای ودریده او له آس سره یو ځای غوږونه څک کړل . سمدلاسه یې هغه تړې تر نظر تېرې کړې چې د غانې سهیل لور ته لکه کلاګانې په مستقیم خط جګې شوې وې .

د ټوپک لوګی پیدا نه شو او هیڅوک یې ونه لیدل. بابه خان د لارې ژۍ ته را په شا شو. په یوه هواره ډبره کیناست او سترګې یې د غرونو له لوړ بام نه د کوهستان هوارې او شنې ناوې ته راواړولې . د شونډو په پترو کې یې د مسکا یوه تګخه څپه راغبرګه شوه. په زړهکېې د رزم او عشق غبرګې بریښناوې وېړ کېدې، د خندې څپو په غېږ کې راوینو او له ځایه یې راپاڅاوه. د آس جلب یې د زین په کړۍ کې وتاړه او بیرته مخ ښکته د شتل په استقامت کوهستان ته راځوړند شو .

«... نه ، نه زه کورته نه ځم، د کلیو لارې تړل شویدي ؛ زه واځې یوه لار لرم او هغه د جنګ میدان ته وتلې ده ؛

ماته له دې خاورې نه د مور پوی راځي او زه حق نلرم خپله زخمي مور د فرنګ تالانګروته یواځې پرېږدم ؛

دوه لاسونه د همدې لپاره دي که یو مات شي، بل د هغه پر ځای وخوځېږي ، که زموږ غلي شوو ژوند او تکل به غلي شي او زموږ پر ځالو به د اسارت بدمرغ سیوری خور شي.

تر څو زموږ د پلرونو هدېرو دلته شته دي او په اورغلو کې پخوانۍ سکروټې نه دي ایرې شوي او د وطن زرین لمر زموږ رګونه او پلې ګرمولای شي د تورې وخت نه دې تېر

شوی؛

موږ د مینې د تودو خې او د عدالت د رڼا ستایونکې یو؛

زور او زبردستۍ ته نه تسلمېږو او د مېړانې مرگ د سپیتانې په ژوند نه بدلوو .

دا سینو نه ولې شور کوي، دا د هندو کش د پاسه د وریځو ځپې ولې پر کمرونو وروانگي، دا د جگو درو واورې ولې رالېږدي او ددې وطن شجاع انسان ولې پرلویشته خاوره جنگېږي ؟

داځکه چې موږ او زموږ وطن د آزادۍ او ژوند د ساتلو لپاره هست شوی یو .

دا دی بېر ته درو گرزیدم، ما وبخښه وطنه ! ؛

زه بیا هیڅکله له ژوندې زړه سره د سرنوشت له سرو لیکو څخه نه راوزم ؛

زه به د وطن د نجونو د غرور او مینې ډیوې ته د نامیندۍ او مرگ سیلۍ ورپرې نه ږدم ».

توره وریځ د کوهستان د غروب په ورستیو شغلوکې لکه د نوبهار د ارغلیو [۲۲] انگاره سره شوې وه او د شنې ناوې د هیلیو نورونه [۲۳] یې لکه د سرو زرو کڅوري پخپلو رنگینو وینو ماړه کړي وو. ځانگړی سپور لکه د نیل زخمی نهنگـ د لمر د شغلو له سمندرنه د تیارو د وتل ته ورښکته کېده .

د سربازانو ژوند د کړاوونو او افتخاراتو پر لیکه تېرېږي !

---

۲۲ ـ اورغلی = اورتون، آتشکده ـ نغری

۲۳ ـ نور = د هیلیو د ښکار ډنډ

# د کوڅو سرګردان

سر تور او سپيره سر، لوڅې او چاودې پښې، څيرې ګريوان، له او ښکو ډکې ګسترګې او له سلګو پرسيدلی ستونی ايخوا؛ ديخوا سر ګردان روان و. لمن يې له ورو، ورو هلو کو او شګو څخه ډکه کړی وه، کله به د سړک يو ژۍ ته کېناست او د لمنې شګې او هلو کې به يې ښکته پورته کول او کله به يې بېرته په لمن کې واچول او بې ارادې به بل لور ته روان شو. خو د کوچنيانو کومه ډله به يې وليد له ژړه غ.نې بنه به يې مسکۍ شوه او په ډېر خوند به د هغې په لور وررهي شو. د لمنې هلو کي به يې وغورځول او سپيره ميره به ملګرو ته ورغی. دهلکانو په توده او ښايسته کاليو به يې ګوتې وهلې او بيا به يې په نيمه ژبه ورته وويل:

دا چا درته راوړي دي؟

کله به يې چې د کوم هلک سره د خوراک کوم شی وليد، نو دستې به يې پوښتنه ورڅخه وکړه چې څنګه خوند لري؟ چا درکړيدي؟ ماته يې ولې نه راکوي؟ بيا به يې وروسته وويل چې لږ خو ماته راکړه!

نو که به ملګرو سلا ورته ونکړه بيا به يې د چورولو څار کاوه، چې وار به يې برابر شو لاس به يې واچاوه او منډه به يې واخيسته، هلکان به پسې شول او وروسته له څو منډو رامنډو به يې ونيو او په وهلو به يې ځتنونه پې ستړي کړل.

ژړاوې او نارې به پورته وې، خوله او پوزه به وينې شوي وو ملګري به تللي وو او دی خوار به بېر او سپيره سر پرځای پړ مخې پروت و.

خلک به دده د اړخ سره تېريدل، راتېريدل. چا به کوم وارې ورته وکتل او چا به بېخې التفاوت هم ورته کاوه. له ځانه سره به يې ترمازيګره وژړل او کله به په ژړا، ژړاکې غلی شو او خوب به پسې يووړ. او بې تودوخې لمر به د غرو تر شا کيناست. د ماښام تياره به د ښار په فضا ورو ورو راغوړيدله سړو سيليو به له خوبه ويښ کړ. راولاړ به شو. سترګې به يې ومښلې او بيا به له خوبه ډک او ځوړند سر د خور خواته روان شو. له عمومي واټ څخه به

رابیل شو او د لوړ او ښایسته مانیو اړخ ته په د پلیو د لارې کیڼې خواته د دیوال تر اړخ روان و. کله به دغو ښو او غوړو زړه وړونکي ورېمې د یوه بلډای د کور تر مینځ لکه میخ ځای پر ځای ودراوه، غټې او توږې سترګې به یې د بلډای په وره کې ښکته او پورته ورغړولې، خو ددې له ویرې چې د ماښام تیاره به زیاته شي ډېر ځند به یې نه کاوه، نو رهي به شو او په لار کې به د نان بای دکان ته راورسید. هلته به د ګرمو ډوډیو بوپ د دکان خولې ته راوو ست، اه هغه ځایه به هم په داسې حال کې چې تر ډېره ځایه به یې مخ شاته اړولی و - زړه ناز ړه راتېر شو. لاسونه به یې تر تخر ګو لاندې نیولي وو او له یخنۍ به لکه بڼکه رېږدیده. د پاخه ماښام په پخه تیاره کې به د هغې لویې دروازې مخ ته راورسید، ننه به ووت، د لوي او ښایسته عمارت تر مخ به لکه غل ورو ، ورو د پښو په ګوتو روان و، کله به سره له ټوله احتیاطه د کوربه هلکانو په لاس کښیووت، هلته به نو بیا هلکانو را څملولی و، د ګریوان درز به یې تر لمنې پورې څیرې شو او د خوار کي چیغو او نارو دنیا نیولې وهز بختوره اګو[۲۴] به پې راخبر شوه، رامنډې به یې کړې او له هلکانو څخه به یې خلاص کړ، هلته به یې له اوړ کو ډ کې تورې سترګې د متجاوزو هلکانو په ستر ګو و ګنډلې، څو سلګۍ به یې ووهلې او ځان سره به ورو ، ورو وچونګېده، بیا نو بختورې اګو تر لاس نیولی د لوی سالون له مخې به سې تېر کړ او په یوه نرۍ لار به یې د نوکرانو سرای ته ننه یوست. هلته به د غواو له غوجلې څخه تېر شو او د تورې نمجنې کوټې دروازه به یې خلاصه کړه بیا به د کوټې بر سر ته تېر شو او د زاړه پوز کې په پیڅه به پریووت او رړل به یې.

څه وخت وروسته به بختوره اګو راغله او دوه وچې ډوډۍ به یې ورسره راوړې او په سره صندلۍ باندې به یې کیښودې، بیا به ولاړه او څه سکاره به یې راوړل، په کمکوټې منقل کې به یې واچول، د کوټې دروازه به یې پرانیستله او سکاره به یې تازه کړل. تور او خیرن چای جوش به یې په سکرو کیښود او چای به یې برابر کړ. د منقل سکاره به یې په صندلۍ کې واچول، بیا یې تور سترګې یتیم را چخلا کړ او تریخ چای به یې له ډوډۍ سره پې وخور.

۲۴ ـ اګو = ابۍ ، ادې

کله کله به د کور به له آشپزنانې څخه د کباب او قورمې وږمه دهلك سپوږمو ته راغله، نو لاس به يې له ډوډۍ څخه ويووست او کباب به يې غوښت. مرور به شو، په ږړا او سلګيو به يې لاس پورې کړ او په ږړا، ږړا کې به پسې ويده شو. بختورې اګو به زوړ او شړېدلی ګنډ په ټندلۍ واچاوه او هلك به يې پکې ونغښت، بيا به يې لکه ليونۍ له ځان سره ورو، ورو خبرې کولې :

« لويه خدايه ، دا کوچنی، بې موره، بې پلاره هلك څنګه پوه کړم چې بايد په دې تيت او ويرجن ژوند قناعت وکړي،

دی هيڅکله نه شي پوهېدای چې بې پلاره او بې موره هلکان د قورمو او کبابونو استحقاق نلريږ دوی بايد لوڅ، بربنډ او په نيمه ګيډه ژوند وکړي. دوی د ښو کاليو، تودې بسترې او آسوده ژوند وړ نه دي، د دوی دنيا د لوږې او تندې دنيا ده، دوی بايد ه غمونو کې لوی شي او د نورو تر بار لاندې شپې او ورځې تېرې کړي او بيا د ژوند وروستۍ سلکۍ په کړاوونو او بدبختيو کې ووهي .»

بختورې اګو به دا څو خبرې پخپلو او ښکو ووينځلې او بيا به يې د تورو تيلو څراغ ټپ کړ او ويده به شوه .

د څراغ لوکي، د سکرو بخار او د نمجنې کوټې رطوبت به يو ډېر بد بوی او مهلك کيفيت پيدا کړ . همدا کوټه وه چې د تور سترګې يتيم موريې له ارمانو سره يوځای ګورته وليږله. اوس هم همدا کوټه ده چې بختوره اګو يې په راز راز رنځو اخته کړېده. بختوره اګو به څنګه چې سر مشنبود، نو په ټوخلو به يې پيل وکړز کله به چې ټوخلې ډېره وارخطا کړه، نو نيمه شپه به راووتله او تر سپيده چاوده به په انګړ کې ګرزېدله .

شپې او ورځې روانې وي. بختورې اګو ناجوړې سخته شوه . د کور به له خدمت او چوپړ وهلو څخه ولويده او داسې په ځان اخته شوه چې هر څه يې هير شول. تورسترګې هلك ته ددې موقع پيدا شو چې د بادارانو کورته ورننوزي. هلك به په کور کې دې پلو، هغه پلو ګرزيده، منډه به يې وهلې. د کور د خلکو له وهلو او ډبولو څخه به يې سترګه نه کوله، کوچني هلکان اکثر شوخ وي، بيا په تېره يتيم هلك چې د روزنې او سمو عاداتونو له زده کولو څخه محروم پاته شوی وي .

یوه ورځ د کور ښځښتن دوه، درې واري ښه په مزه وډباوه، مګر هلک لارې ته برابر نه شو او سم له ماښام سره یې یو ډېر ښایسته چیني لوښی مات کړ. د کور میرمن سخته په غصه شوه، هلک یې له لاسه راونیو او د آسپزخانې خولې ته یې راووست، بیایې خپل یوه مزدور ته وسپاره او ورته ویې ویل:

دا هلک له چتې وتلی دی! دا یوه داسې ځای ته بوزه چې بیرته زموږ د کور لار پیدا نکړي، هلته یې خوشې کېه او پخپله بیرته راځه!

شپه تیره شوي وه، د بختورې اګو ژړاوې په تور سترګې یتیم پسې پای ته رسیدلې وې، د ژمې د سباوون ژېړ لمر د سپینو واورو په برستن غوړیدلی و. د بختورې اګو باداران په تاوده سالون کې د سبا ناري په دسترخوان ناست وو، رایو خوږې او ښایسته سندرې خپرولې، کوچ، پیروي، هګۍ، کباب، شودې او مربا په دسترخوان ایښي وو، دخندا خبرو او مرکو په مینځ کې یو مزدور راننه ووت او ویې ویل:

د بختورې اګو حال ډېر بد دی. د سترګو توریه بېخي ورک شوي دي. خبرې نشي کولای او د نورو په خبره هم نه پوهیږي. ماته خو ښکاري چې خلاصه ده، نور نو خدای ښه پوهیږي.

هلته چا وویل:

له مرګه خو نشو خلاصولای، نو زموږ تکلیف څه دی؟

د کاله میرمن وویل:

چې مري، خو مري به، اجل به یې پوره شوی وي ته پخپله ....

د راډیو اعلانونه شروع شول او د کور د میرمنې خبرې پرې کړې، راډیو وویل:

نن شپه د یوه کوچني هلک مړی چې عمر یې له پنځو تر شپږو کلونو پوې رسیږي د ښار د یوه عمومي سړک تر اړخ د پولیسو لاس ته ورغلی دی، خپلوان او مشران دې دریمې ناحیې څخه پوښتنه وکړي.

د کور خلکو یو بل ته سره زکتل، عواطف یې ونه پاریدل، سترګې یې لمدې نه شوې. زړونه یې ونه برېښیدل، مګر دومره یې وویل:

یخنی وژلی دی.

ناڅاپي د مزدور له خولې چيغه راووته :
دا زړونه نه دي ډبرې دي، ډبرې دي، ډبرې .
د کور خاوندانو رنګونه والوتل او په مړو ستر ګوېې يو بل ته سره کتل .

۱۳۴۰ کال

| عنوان | مخ |
|---|---|